


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکي د روزنې او د ساینس مرکز معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود

# پښتو

## د دري ژبو د شپږم ټولګي لپاره



د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

unicef 

د هـر ماشـوم لپاره
بـرای هــر طفــل





**د پوهنې وزارت**

**د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکي د روزنې او د ساینس مرکز معینیت**

**د تعلیمي نصاب د پراختیا لوی ریاست**

# د ښوونکي لارښود

# پښتو

## د دري ژبو د شپږم ټولګي لپاره



**د چاپ کال ۱۳۸۹ هـ. ش.**




د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

# د پښتو ژبې د ښوونکي د تدریس لارښود

## شپږم ټولګی

## (دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

## مؤلفان:

- د سرمولف مرستیاله فروزان خاموش
- سر مولف امین الله نژند
- مولفه شکیلا دوست

## د ژبې ایډیټ:

- د سرمولف مرستیال محمد قدوس زکوخیل

## دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه:

ـ حبیب الله راحل د تعلیمي نصاب په ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار
ـ د سرمؤلف مرستیال گل اقا شایق د اسلامیاتو د دیپارتمنت غړی

## د څارنې کمیټه:

ـ دکتور اسد الله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین
ـ دکتور شیرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
ـ سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

## طرح او ډیزاین:

صدرالدین ابراهیم خیل



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامېریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزير پيغام**

د لوی خدایﷻ ډير شکر دی چې انسان يې په احسن تقويم کې پيدا او هغه ته يې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه يې سمبال کړ. ډير درود دې وي د اسلام پر ګران پيغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانيت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لاربښوونې او روښنايي پيغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختيا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهير کې يو مهم رکن بلل کيږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتياوو سره سم تاليف کيږي. درسي کتابونه بايد د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل ديني او اخلاقي زده کړې د نوو ميتودونو له لارې زده کوونکو ته وليږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تاليف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زيار باسي چې په هيواد کې تعليمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هويت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معيارونو، نوو روزنيزو ميتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړيږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پياوړی کړي. د خبرو اترو او پيرزوينې د فرهنګ دودول، د هيواد پالنې او د مينې او محبت د حس پياوړی کول، ښېنه او پيوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښايي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې يو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هيواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې يې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هيله لرم د تعليمي نصاب په دقيق او مخلصانه تطبيق کې د هيواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنويت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هيواد د زده کړې د نظام برې د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شريفو خلکو، په تيره بيا له کورنيو او د زده کوونکو له درنو اولياوو څخه هيله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هيڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو ليکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرينو او د زده کوونکو له محترمو اولياوو څخه هيله کيږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړانديزونو او نيوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړيوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ويش کې يې زيار ايستلی او مرسته يې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پايه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپيڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سميع قريب مجيب.

**د پوهنې وزير**

**دوکتور اسدالله حنيف بلخي**

# لړلیک

# له ښوونکو سره يوځوخبرې

## درنوښوونکو!

د ښوونکي دغه لارښود هغه مرستندوی کتاب دی چې د دري ژبو د شپږم ټولګي د درسي کتاب دښه تدريس ا و لارښوونې لپاره مرسته کولای شي.

دغه مرستندوی لارښود کتاب څکه دښوونکولپاره ليکل کيږي چې په لومړي ګام کې په درسي کتاب د بيا کتنې په اړتيا باندې پوه شي او دغه راز په درسي کتاب کې د انځورونو، د لوست د هڅوونکو پوښتنو اوفعاليتونو په موخو او همدغو موخو ته درسيدو لپاره د تدريس په ميتودونو او لارو چارو لاښه وپوهيږي او د لوست ورکولو په برخه کې به د يو مرستندوی کتاب په توګه ترې کار واخلي.

د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف د لوی رياست د ريسرچ رياست له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې د بيا کتنې لپاره له اصولوسره سم نظرونه راټول کړل، هغه يې وڅيړل او اړوند څانګو ته يې وسپارل. د پښتو ژبې مؤلفينو نوموړې نظرونه په دقت سره مطالعه کړل،کوم چې د درسي کتابونو د سمون لپاره سم وو هغه يې راواخيستل او خپل نظرونه يې هم ورسره يوځای کړل او له لومړی ټولګی څخه ترشپږم ټولګی پورې يې په درسي کتابونو باندې نوی نظر وکړ.

د پښتو ژبو زده کوونکو لپاره د شپږم ټولګي دغه موجوده کتاب چې اوس تدريس کيږي، د ښه تدريس په خاطرېي دښوونکو لپاره دغه لارښود کتاب تأليف شوی دی چې ښوونکي ترې کار واخلی.

په دغه لارښود کتاب کې بيلابيلو موخو ته د زده کوونکو د رسيدو لپاره لارې چارې په ګوته شوي او د هر لوست د تدريس درسي ساعتونه هم پکې ښودل شوي او خبرې پرې شوي دي.

ښه به وي چې په دې لارښود کتاب کې د بيلابيلو برخو تر روښانولو دمخه د معلم محوری او د فعالې زده کړې په هکله لنډې خبرې وکړو.

## د معلم محوری زده کړه:

زموږ په هيواد کې پخوا دمعلم محوری دزده کړې په چوکاټ کې زده کړه کيدله. دزده کړې ټول فعاليتونه به ښوونکي سرته رسول اوزده کوونکو به يوازې دليدونکو اواوريدونکو دنده سرته رسوله. په دغه ډول زده کړه کې به دفعاليتونو دسرته رسولو ټول فشار په ښوونکي و.

په ټولګي کې به ترې لږشمير با استعداده زده کوونکوګټه پورته کوله، د تدريس په دغه ډول زده کړه کې زياتو زده کوونکو څکه ګټه نشوه اخيستلای او له زده کړوڅخه وروسته پاتې کيدل چې په فعاليتونوکې ورته برخه نه ورکول کيده. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکو په پوهنيزه، مهارتي او ذهنيتي برخه کې کافي ونډه نه درلوده.

د ساينس او تکنالوژۍ د زيات انکشاف او پرمختګ لپاره اړينه وه چې د ښوونې او روزنې پوهانو په درسي نصاب او د تدريس په اصولوکې داسې لارې چارې ولټولي چې زده کوونکي وکولای شي دزده کړې په پوهنيزې، مهارتي اوذهنيتي برخوکې فعاله برخه واخلي اوپه ژوند کې ترې ګټه واخلي.

## فعاله او مشارکتي زده کړه:

کله چې دښوونې اوروزنې پوهان دمعلم محوری دزده کړې په چوکاټ کې په نیمګړتیاوو پوه او په دې فکر کې شول چې باید داسې فعاله او مشارکتي زده کړه رامنځته شي چې په هغې کې ښوونکي دلارښود، څارونکي اوفعال ګډون کوونکي حیثیت ولري اوزده کوونکي په خپله په لوست کې فعاله اوعملي برخه ولري چې زده کوونکي وکړای شي دزده کړې په بهیر کې خپله دانشي، مهارتي اوذهنیتي پوهه پیاوړې کړي.

په دې ډول زده کړه کې ښوونکي یوازې زده کوونکي څاري اوله زده کوونکو سره په ستونزو کې مرسته کوي. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکي په خپله کارکوي، لارښوونوته ژوره پاملرنه کوي او زده کوونکوته په ټولو فعالیتونو کې ونډه ورکول کیږي.

په دې ډول فعالې اومشارکتي زده کړه کې ښوونکي دهر لو ست موخه په پام کې نیسي اوزده کوونکي نوموړې موخې ته دهغولارو چارو پواسطه ځان رسوي،کومې چې په درسي او لارښود کتاب کې ورته لیکل شویدي. د درسي کتاب دهرلوست دموخو دزده کړې لپاره لازمه ده چې له بیلابیلو میتودونو څخه کار واخیستل شي چې د همدې لارښود کتاب دلوستونو په برخه کې ترې کار اخیستل شوې ده.

## د میتودونو ارزښت:

په فعال تدریس کې بیلابیل میتودونه دلوستونو دتدریس په برخه کې په ګوته شوي دي چې هریویې په خپل ځای د ژبې دزده کړې په برخه کې دزده کوونکولپاره ګټه لري، لاهم په دې برخه کې څیړنې روانې دي اودوخت په تیریدوسر ه په تعلیمي نصاب کې نوي بدلونونه رامنځته کیږي.

د ژبو په درسي کتابونو کې پوهان دې ټکي ته متوجې شول چې باید زده کوونکي د ژبې د زده کړې مهارتونه، لکه :غوږ نیول، لیدل، اورېدل، لوستل، لیکل اوخبرې کول سرته ورسوي. په مشارکتي زده کړه کې ارزښتونه دا دي چې زده کوونکي لیدلو، اوریدلو، غوږنیولو، لوست ویلو، لیکلواوخبروکولو ته هڅول کیږي. اوپه دې برخه کې له یوکسیز،دوه کسیز، ډله ییز، دسوال اوځواب له میتودونو څخه کاروا‌خلي.

دزده کړې په دې سیستم کې د زده کوونکو ذهن وده او انکشاف کوي، په ذهنیت کې یې بدلونونه رامنځته کیږي، د درک اوتفکر قوه یې لوړیږي، په دې زده کړه کې د زده کوونکو د زده کړې کچه لوړیږي او په راتلونکي وخت کې د خپل رسالت اومسوولیت دزده کړې اودرک لپاره چمتو کیږي.

د لارښودکتاب په دې برخه کې په هغو برخو باندې رڼا اچوو چې له ښوونکي سره دفعالې زدکړې په پرمخ بیولو او له مؤلفینو سره د هم آهنګۍ او هم فکرۍ په برخه کې مرسته کوي او د ښوونکي لپاره په تدریس کې پوره لارښوونه کولای شي.

## پوهنیزه برخه:

ددې برخې موخه داده چې زده کوونکي د لوست په معنا او مفهوم وپوهیږي او د بیلابیلو موضوعاتو په باره کې یې پوهه زیاته شي. ددې کتاب په ټولو لوستونوکې دپوهنیزې برخې دپیاوړ تیا په موخه جملې راوړل شوي او زیات زور په تربیوي اړخ باندې زیات شوی دی. دیوې موضوع په باره کې پوهه ترلاسه کول پوهنیزه برخه ده چې دپوهې ترلاسه کول دزده کړې لومړنی شرط بلل کیږي، خوموږ زده کوونکو ته نه وایو چې کومه جمله پوهنیزه، مهارتي اوکومه ذهنیتي ده. پدې باندې باید یوازې ښوونکی پوه شي اوداسې فعالیتونه په زده کوونکو سرته ورسوي چې په دغو درې واړو برخو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

### مهارتي برخه:

په زده کړه کې پوهيدل هغه و خت ارزښت اوګټه لري چې زده کوونکي پـه عملـي ډول کـار وکـړي، لوسـتل وکړای شي، په مفهوم يې پوه شي، لوستل شوې جملې وليکلی شي اوپه ورځني ژوند کې ورڅخـه کـار واخلـي. پـه دې نوي درسي کتاب کې دلوستلو اوليکلو دزده کړې په موخه فعاليتونه ورکړل شوي دي. له دې امله ددرسي کتاب په ټولو لوستونوکې دمهارت برخه په پام کې نيول شوې ده اودغه راز په فعاليتونوکې هم دپوهې اومهـارت پـه برخـه کې فعاليتونه راوړل شوي دي.

### ذهنيتي برخه

له ذهنيتي برخې څخه هدف دادی چې دمتن له لوستلووروسته دزده کوونکو دانشي او مهارتي خوا پياوړي شي او دزده کوونکوپه ذهنيت، سلوك اوکړو وړوکې بدلون راشي. هغه وخت دزده کوونکو په ذهن کې بدلون راتلای شي چې زده کوونکي دلوست په مفهوم پوه او له لوست څخه اخيستنه وکړي، له هغه وروسته دزده کوونکو په کړو وړوکې مثبت بدلون رامنځته اوپه خپل ورځني ژوند کې ترې ګټه واخلي. دکتاب دلوستونو په ټولو برخو ترپوهنيزې اومهارتي برخې وروسته د ذهنيتي برخې دپياوړتيا لپاره جملې راغلي دي او د زده کوونکو لپاره مستقيم او غيرمستقيم پيغامونه ورکړل شوي دي.

### د اوريدلو او غوږ نيولو برخه:

د ژبې په زده کړه کې اړينه ده چې د سم اوريدلو، سم غوږ نيولو، سم او بامفهومه لوستلو، ليکلو سم ليـدلو او خبروکولو مهارتونه په پام کې ونيول شي. ځکه په دې ټولګي کې بايد زده کوونکي متن داسې ولولي چې په مفهوم يې پوه شي. دکتاب په فعاليتونو کې دپوهنيزې، مهارتي اوذهنيتي برخـو پـه راوړلوسـربيره روزنيـز پيامونـه هـم د زده کوونکو دپوهې د کچې دلوړولو لپاره راوړل شوي دي. دښوونې اوروزنې پوهانو په تـدريس کـې بيلابيـل ميتودونـه دفعال تدريس داصولو پربنسټ رامنځته کړي دي، لکه: دلوستلو، ليکلو، سوال او ځواب، مقايسوي، خبرو اترو، مشـق او تمرين، په يو کسيز، دوه کسيزه توګه فعاليتونه اونور.

دښـوونکو بـری پـه دې کـې دا دی چې پـه خپـل مضـمون بانـدې حـاکم وي. ددرسـي کتـاب اودښـوونکي دلارښودکتاب د فعاليتونو له مخې لوست پرمخ يوسي اوله مؤلفينو سره هم فکره اوسي.

څومره چې ښوونکی په ډيرو ميتودونو پوه وي اوڅومره چې دلوست په جريان کې له مرسـتندويه موادوڅخـه کار واخلي، په هماغه اندازه زده کړه اغيزمنه اوګټوره کيږي او دلوست موخې سرته رسيږي.

په دې ټولوکې ښوونکي ته لازمه ده چې په ټولګي کې لارښوونکی اوڅارونکی واوسي، په ټولګي کې دزده کوونکوفردي توپيرونه، لياقت او استعدادونه په پام کـي ونيسـي اوټولـو زده کوونکوتـه پـه کـې ونـډه ورکـړل شـي. دميتودونو دسرته رسولو لپاره لازمه ده چې له مرستندوی توکو څخه کارواخيستل شي.

### د لارښود چوکاټ:

په لارښودکتاب کې مو د ځانګې د مؤلفينو په يو نظر سره د ښـوونکي د لارښـود لـه بيلابيلـو چوکاټونوڅخـه يوازې همدغه چوکاټ په ګډ نظر سره وټاکه. موږ يولوست په درو برخو ونه ويشـلو. ددې کـار لپـاره مـو يـو شـمير دلايل درلودل:

۱- که چېرې يولوست د ښوونکي لپاره په لاربنود کتاب کې په درو برخو ويشلای وای. د ښوونکي دغير حاضرۍ په صورت کې يولوست تيريده په بله ورځ مجبور و چې د دويم ساعت لپاره ټاکل شوی لوست ورکړي. په دې ډول دلومړي ساعت لوست پاتې کيده، په دويم ساعت کې يې دويمه برخه لوست ورکاوه.
۲- د ښوونکي دازادی اوانکشاف مخه نيول کيده. داصولوله مخې ښوونکی بايد دازادی په چوکاټ کې خپله هم کار وکړی، خپل پلان ولري اويولوست پـه خپلـه خوښـه د اوونـۍ پـه درسـي ساعتونوکې ورتـه تـدريس کـړي ښوونکي بايد ورځنی، هفته وار، مياشتنی اوکلنی پلان ددرسي کتاب له مخې جوړ کړي.
۳- که مويولوست په درو برخو ويشلای وای دکتاب حجم ډيريده او ډيرې پيسې پرې لگيدلې.
۴- بله داچې که چېرې درسي ساعتونه کم اويازيات شي ښوونکی ددې واک لري چې يـو لوسـت داوونـۍ پـه درسي ساعتونوکې ورته تدريس کړي.

## د تدريس توکي:

هغه مواد اونور مرستندوی توکي دي چې په يوې سيمې کې د محيطي موادو په توگه موجود وي او د هغـو پـه واسطه ښوونکی هدف ته پرې ځان ورسوي. زده کوونکو ته تدريس گټور او په زړه پورې کړي، د تدريس وسـيلې او مرستندويه توکي، لکه: تخته، تباشير، تختـه پـاک، د الفبـا چـارټ، انځورونـه، د کلمـو او جملـو ليکلـي کارتونـه، کمپيوتر، د پروجکتور پواسطه دهنري اوتعليمي فلمونو ښودل،پروجکتور اونور د تدريس ښې وسيلې بلل کيږي.

## ارزونه:

ښوونکي ته لازمه د ه چې دلوست په پای کې دخپل لوست دارزونې لپاره چې زده کوونکوځومره زده کـړه کړې ده. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. دارزونې گټه داده چې ښوونکی دارزونې په واسطه هم زده کـوونکي ارزوي او هم ځان ارزوي.که چېرې زده کوونکي پوه شوي نه وي، ښوونکی کولای شي چې لوست په لنـډه توگـه يو ځل ورته تکرارکړي.
د هر متن د پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي برخې له پوهيدو وروسته د درس د تحکيم، ټينگښت او پوهېدو لپـاره ارزونه د درسي پروگرام يو بنستيز رکن دی چې ښوونکی يې بايد په پام کې ولري.

## کورنۍ دنده:

ښـوونکی دې زده کوونکوتـه مناسـبه کورنۍدنـده ورکـړي چې زده کـوونکي يـې پـه کـورکې سـرته ورسـوي. دکورنۍدندې کتنه ډېره مهمه اوارزښتناکه ده. دکـورنۍ دنـدې پـه سـرته رسولوسـره زده کـوونکي خپـل مسؤوليت احساسوي، له زده کړې سره عادت کيږي، دزده کړې درجه يې لوړيږي اوله زده کړې څخه لرې نه پاتې کيږي. ښه ده چې زده کوونکوته د هغوی دپوهې اوپياوړتيا سره سم بيلا بيلې کورنۍ دنـدې ورکـړل شـي اودنـورو مضـمونونو کورنۍ دندې هم په پام کې ونيسي.
په پخوانيو درسي کتابونو کې يوازې پوهنيزې خواته ډيره پاملرنه شوي وه، خو د درى ژبو شپږم ټولگي پـه دې نوي درسی کتاب کې دشرايطو او مفرداتو په پام کې نيولو سره د بيا کتنې کار پيل شو او د هر لوست پـه مـتن کـې پوهنيزه، مهارتي اوذهنيتي برخې ورزياتې شوې او دغه راز د هر لوست لپـاره يـو شـمير فعاليتونـه چې پـه هغـو کـې دانشي، مهارتي او ذهنيتي برخې لري، هم ليکل شوي دي.
په لاربنودکتاب کې دټولو لوستونو لپاره يو عمومي چوکاټ تيار شوی او ډک شوی دی. چوکاټ داسې جوړ شوی دی چې لومړی د چوکاټ په سرکې د لوست شميره، د لوست د تدريس وخت ليکل شوی دی.

هر لوست باید د اوونۍ په درسي ساعتونوکې زده کوونکو ته تدریس شي.

موږ ښوونکي نه قیدوو. ښوونکي باید یولوست داوونۍ د درسي ساعتونو په پام کې نیولو سره په درو برخو وویشي. له چوکاټ سره سم دې په هردرسي ساعت لومړۍ د درسي کتاب له فعالیتونو څخه کارواخلي. که دکتاب کوم فعالیت پاتې شو بیا دې پاتې فعالیتونه د لارښود له فعالیتونو سره د نورو درسي ساعتونو لپاره په پام کې ونیسي. په زده کوونکو دې عملي کړي اوکه وخت و ښوونکي کولای شي د همدغه ډول فعالیتونو په ډول نور فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي. په لومړي درسي ساعت کې دکتاب له مخې کورنۍ دنده ورته ورکړي اوپه دویم درسي ساعت کې دې د لارښود له مخې کورنۍ دنده ورته وسپاري او په دریم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورځخه وغواړي. ددرسي کتابونو د تألیف په برخه کې په درسي کتابونو بیا کتنه د معارف له ستراتیژۍ سره سمه شوې ده چې زده کوونکي د لومړۍ دورې تر فارغیدو وروسته په لوستلو او لیکلو وپوهیږي. لـه دې املـه لازمه ده چې ښوونکي زده کوونکو ته ددغه لارښود کتاب له مخې دزده کړې مهارتونه او فعالیتونه په پام کې ونیسي اوزده کوونکي په زده کړه کې جسمي اوذهني فعال ګډون وکړي.

## درنوښوونکو!

د درۍ ژبو د شپږم ټولګي درسي کتاب چې ستاسو په واک کې دی، تربیاکتنې وروسته یې خپل قانوني پړاوونه وهلي، چاپ اوستاسوپه واک کې درکړل شوی دی. په پخواني درسي کتاب کې دریسرچ د ریاست لـه خـوا راټولې شوې بیلابیلې نظر یې وڅیړل شوي او د مؤلفینو وړاندیزونه او لازمه نظرونه هم پکې ور زیات شوي دي.

د درۍ ژبو د شپږم ټولګي درسي کتاب دفزیکي جوړښت له مخې ۳ برخې لري:

- دکتاب مقدماتي برخه
- د متن برخه
- وروستۍ برخه

## د کتاب مقدماتي برخه:

- په لومړۍ برخه کې د کتاب مقدماتي برخه راغلې ده چې پـه هغې کـې د لارښـود نـوم، د مؤلفینونومونـه، د محتوا د کتونکي نوم، د ژبې د اډیتور نوم، د دیني، سیاسي او کلتـوري کمیټې نومونـه لیکـل شـوي. د هـرې برخـې مسؤول په خپله برخه کې کتاب لیدلی او د هغو له خوا تیروتنې په ګوته شـوي اوسـمې شـوي دي. ترهغـو وروسـته بسم الله، ملي سرود، د پوهنې د وزیر پیغام او د کتاب لیک لړ راغلي دي.
- دکتاب په دویمه برخه کې د درسي کتاب متن راغلی دی.
- په وروستۍ برخه کې د معارف ترانه راغلې ده.

## درنوښوونکو!

په ټول تعلیمي کال کې له رخصتۍ پرته ۲۸ درسي اوونۍ په پام کې نیول شـوي دي. پـه هـره اوونـۍ کـې پـه ابتدایه ټولګیوکې دېښتوژبو زده کو ونکولپاره په اونۍ کې ۵ درسي ساعتونه د اوس لپاره په پام کې نیول شـوي دي، چې ټول ۱۴۰ساعتونه کیږي. موږ دټول تعلیمي کال د ۲۸ اوونیو په پام کې نیولو سره په درسي کتـاب کـې ټـول ۴۶ لوستونه راوړي دي چې یو لوست په ۳ درسي ساعتونوکې تدریس کیږي اوټول ۱۳۸ساعتونه کیږي په پـای ۲درسـي ساعتونه پاتې کیږي، په نوموړو ۲ساعتونوکې دې پخواني لوستونه تکرارشي.

باید یادونه وکړو چې موږ درسي کتاب په هر لوست کې لومړی دلوست شمېره راوړي ده. ترهغه وروسته دلوست سرلیك اوبیا ترې لاندې داصولوله مخې تصویرونه اوعکسونه ځکه راوړي دي چې هر عکس اوانځور دمتن یوه برخه بلل کیږي. ښوونکی باید د انځور په هکله له زده کوونکو څخه کله ناکله انگیزه وي پوښتنه وکړي چې په عکس اویا انځورکې څه ویني؟

د هر عکس اویا انځورلاندې دلوست موخه راغلې ده چې دهمدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی اودهمدغې موخې په اساس ورته فعالیتونه عیار شوي چې ښوونکي یې په زده کوونکوباندې سرته ورسوي اوخپله ورسره مرسته و کړي. تردې وروسته هڅوونکي پوښتنې راغلي دي، له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې دهغوذهن لوست ته راوگرزي.

له هغه وروسته دلوست متن راغلی دی. په متن کې دانشي، مهارتي اوذهنیتي خواوې په پام کې نیول شوي دي. ترمتن وروسته فعالیتونه راغلي دي، ښوونکي کولای شي دهمدې لارښود دلارښوونو له مخې چې مخکې یې یادونه وشوه کاروکړي.

کله چې ښوونکی ټولگي ته ورشي، لومړی به مقدماتي فعالیت سرته ورسوي، یعنې ترهر څه دمخه بایدسلام واچوي چې په زده کوونکي کې تربیتي روحیه پیاوړي شي بیا به د هغوی د تیرې ورځې د غیرحاضرۍ پوښتنه وکړي، حاضري به واخلي. د تیرلوست په هکله به پوښتنه وکړي او بیا به کورنۍ دنده وگوري. کورنۍ دنده داسې نه چې یوازې د یو څو کسو بلکې د ټولو زده کوونکوکورنۍ دنده به گوري، که وخت نه و، ښوونکی کولای شي چې کتابچې ترې راټولې او په وزگار وخت کې یې په دقیق ډول وگوري اولارښوونه ورته وکړي.

بیا به دلوست سرلیك پرتختې ولیکي او د لوست د سرلیك یا د تصوریر په هکله به له زده کوونکو څخه انگیزوي پوښتنې وکړی. وروسته به لوست پیل کړي. په لارښودکتاب کې دلوست ورکولو لپاره د هر لوست لپاره چوکاټ ورکړل شوی. له چوکاټ سره برابربه وړاندې ولاړشي. موږ د ښوونکي لپاره په چوکاټ کې د لوست شمیره، اودلوست وخت لیکلی دی.ترې وروسته د لوست نوم او د لوست موخې، انگیزوي پوښتنې، د ښوونکي فعالیتونه، د لوست ارزونه، کورنۍ دنده او د ښوونکي لپاره په هغو لوستونو کې اضافي معلومات راوړل شوي دکومو لپاره چې اړین وو.

موږ په لومړي، دویم او دریم لوست مقدماتي فعالیتونه، د لوست میتودونه او د لوست مرستندوی توکي لیکلي خوپه وروستیو جدولونو کې موراوړي نه دي. ښوونکی باید په ټولولوستونو کې د لومړي جدول په ډول مقدماتي فعالیتونه، میتودونه او مرستندوی توکي په پام کې ونیسي.

# لومړی لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **حمد** |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د الله جل‌جلاله د ټولو قدرتونو پېژندنه.<br>ــ د شعر متن به ولولي، ويې ليکي او په مطلب به يې وپوهيږي.<br>ــ د متن اصلي مطلب به درک او په لوست به خبرې وکړای شي.<br>– د څښتن تعالی د ذات په اړه به نوی معلومات تر لاسه کړي. |
| انګيزوي پوښتنې | – د لوست په انځورکې څه شی وينئ؟ ــ آيا تاسو د حمد په معنا او مفهوم وپوهيږئ؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د نوي لوست متن په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن ته ځير شي، ښوونکی دې د بسم الله الرحمن الرحيم په ويلو بيتونه سم او روان ولولي.

ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست بيتونه په خپلو ډلو کې په چوپتيا ولولي.

ــ ښوونکي دې د لوست بيتونه په سم او روان تلفظ ولولي او د لوستلو په بهير کې دې زده کوونکي تر څارنې لاندې ونيسي، وروسته دې د لوست په معنا او مفهوم رڼا واچوي.

ــ ښوونکی دې له هرې ډلې له يوه تن زده کوونکي څخه وغواړي چې په وار سره د حمد په مطلب خبرې وکړي او ښوونکی دې د زده کوونکو نيمګړي معلومات بشپړ کړي او هغوی دې په ښو الفاظوسره وستايي.

ــ زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او نوي لغتونه دې په جملو کې وکاروي او نور زده کوونکي دې د هغوی تيروتنې ور اصلاح کړي.

ــ ښوونکی دې د نوي لوست بيتونه د املا په توګه په زده کوونکو وليکي.

له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ټولګي په مخکې خپل ځان نورو ته په پښتو معرفي کړي.

| ستونزمنې برخې | مدد ــ مرسته او کومک مريی ــ غلام چار ــ کار شګې ــ ريګ احد ــ يو ستايم ــ ستاينه کوم لوړوالی– بلندی |
| --- | --- |
| د لوست ارزونه | ــ څوک د حمد په مطلب خبرې کولای شي؟<br>ــ څوک د شعر بيتونه سم او روان لوستلای شي؟<br>ــ څوک د متن لغتونه معنا اوپر تخته ليکلای شي؟<br>ــ څوک خپل ځان د تولګي په مخ کې معرفي کولای شي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې بيتونه په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## دویم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **حضرت رسول اکرم** صلی الله علیه وسلم **او اعرابی** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د متن سم لوستل او ليکل به وکړای شي او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د لوړو لارښوونو (ارشاداتو) په هکله به معلومات پيدا کړي.<br>ــ د متن په مطلب او مفهوم به خبرې وکړای شي.<br>ــ د لوست مفهوم به په خپله ژبه ووايي.<br>ــ د متن په پوهېدو سره به د خپل شخصيت د لوړېدو په فکر کې شي.<br>ــ د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لوړ شخصيت به وپيژني او د ده د اخلاقو او لارښونو څخه به پيروي وکړي. |
| انگيزوي پوښتنې | ستاسو په فکر ديني ارشادات څه معنا او مفهوم لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه**<br>ــ ښوونکی دې د سلام، احوال پوښتنې، د ټولگي تنظيم او د حاضرۍ له اخيستلو وروسته د زده کوونکو کورنۍ دنده په چټکتيا سره گوري او د يوه تکړه زده کوونکي کورنۍ دنده دې د تختې پرمخ وليکي، نورو زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې خپلې تېروتنې د تختې د ليکنې له مخې اصلاح کړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن د يو بل په مرسته په چوپتيا ولولي او په متن کې مشکلې کلمې په نښه کړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن ته متوجې شي، ښوونکی دې د لوست متن په مناسب آواز او سم تلفظ ولولي او بيا دې معنا او مفهوم توضيح او تشريح کړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي دې ته وهڅوي چې په خپلو ډلو کې د سيالۍ په ډول د لوستل شوي متن څو کرښې يو بل ته املا ووايي، د نيمگړتيا په صورت کې دې ښوونکی مرسته وکړي او د کومو زده کوونکو چې ليکنې بې املايي تېروتنې وي نو لري هغوی دې په ښو الفاظو سره وستايي لکه: آفرين، شاباش، ډېر ښه او داسې نور.<br>ــ ښوونکی دې له هرې ډلې څخه وغواړي چې څو تنه زده کوونکي په خپله خوښه د متن په اصلي مفهوم خبرې وکړي، ښوونکی دې د زده کوونکو د خبرو کولو او د کلمو تلفظ کولو ته پوره پاملرنه وکړي او د هغوی نيمگړتياوې دې ورته اصلاح کړي.<br>ــ څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راوغواړي چې په وار سره لغتونه په مناسبو جملوکې وکاروي، او څو تنه نور دې مفردې کلمې په جمع واړوي | |
| ستونزمنې برخې | |
| د لوست ارزونه | څوک متن سم لوستلای او په دې اړه معلومات ورکولای شي؟<br>ــ څوک د متن مطلب په خپله ژبه ويلای شي؟<br>ــ څوک د لوست لغتونه معنا او پر تخته ليکلای شي؟ |

| | ــ څوک خپل ځان او ملګری نورو ته معرفي کولای شي؟ |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په خپله خوښه د متن څو لغتونه په جملو کې استعمال کړي. |
| اضافي معلومات | ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته لومړی ووايي چې انس بن مالک یو جلیل القدر صحابي و او صحابي هغه چاته ویل کېږي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې په خپل ژوند کې لیدلی وي، ایمان یې ورباندې راوړی وي او بیا په هماغه ایمان کې مړ شوی وي. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وینا، عمل، رفتار او کردار ته حدیث ویل کېږي او صحابه وو به همېشه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم خبرو ته غوږ نیولو او هغه به یې عملي کولې، نو موږ هم باید د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه د صحابه وو په خبرو، رفتار او کردار عمل وکړو. |

## دریم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **پوهنه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د پوهنې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي او وبه یې لیکی.<br>ـ د نوي لوست د جملو املا به ولیکلای شي.<br>ـ په متن کې به متضادې کلمې وپېژني.<br>ـ د پوه او ناپوه د توپیر په اړه به خبرې وکړای شي.<br>ـ د نوي لوست په ارزښت به پوه او په ورځینی ژوند کې به ورځخه کار واخلي. |
| انگیزوي پوښتنې | تاسو پوهېږئ چې پوهنه څه معنا لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې د پوه او ناپوه د توپیر په هکله څه ویلای شي؟

ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښونه وکړي چې د څو شېبو لپاره د متن ټاکلې برخه د یو بل په مرسته په چوپتیا ولولي او مشکل لغتونه دې په نښه کړي.

ـ ښوونکی دې کلمې پرتختې ولیکي او بیا دې متن په خپله د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو په سم تلفظ ولولي او د لوستلو په بهیر کې دې زده کوونکي تر څارنې لاندې ونیسي، وروسته دې د پوهنې د ارزښت په اړه لنډ معلومات ورکړي، همدارنگه د پوه او نا پوه انسان د توپیر په اړه د زده کوونکو د پوهې او سویې په پام کې نیولو سره معلومات ورکړي.

ـ ښوونکی دې د متضادو کلمو لیکلي کارتونه په ټاکل شوو گروپونو ووېشي او له هر گروپ دې وغواړي چې په خپلو منځونو کې د کلمو ضد پیدا کړي او د ورکړل شوو کارتونو د کلمو په څنگ کې دې ولیکي، بیا دې له هر گروپ یو یو تن زده کوونکی د خپل گروپ په استازیتوب کلمې پر تختې ولیکي او څو نور زده کوونکي دې په وار سره ورته جملې جوړې کړي، د تېروتنو په اړه دې خپله زده کوونکي پرې خبرې وکړي، ښوونکی دې د نیمگړتیا په صورت کې لازمه مرسته وکړي.

ـ ښوونکی دې متن د سیالۍ په ډول په ډلو باندې ولولي او که چېرې هرې ډلې د لوست متن سم ولوسته، هغوی دې په ښو الفاظو بدرگه کړي.

ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې لوی خدای جل‌جلاله د پوه او ناپوه د توپیر په هکله څه فرمایلي دي؟ ښوونکی د زده کوونکو ځوابونه اوري او د نه پوهېدو په صورت کې دې خپله ښوونکی ځواب ووایي.

– ښوونکی دې د هرې ډلې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د متن په مطلب خبرې وکړي.

ـ له څو تنو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې څو پښتو کلمې ووایي چې د پښتو اصلي توري پکې راغلي وي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک کولای شي متن سم او روان ولولي؟ |

| | |
|---|---|
| | — څوک کولای شي د لوست مطلب بیان کړي؟<br>— څوک لاندې لغتونه معنا او پر جملو کې کارولای شي؟ ( پوهنه — رڼا — بریالیتوبونو — ډار — خوارۍ)<br>— څوک د لاندې متضادو کلمو ضد پیدا کولای او بیا یې پر تختې لیکلای شي؟ پوه — تیاره — خپل — عمل<br>— د پوهنې له درس څخه مو څه زده کړل او څه احساس کوئ؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د لوستل شوي متن لغتونه په مناسبو جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې ولیکي. |
| اضافي معلومات | پوهنه د علم، پوهې، معلوماتو، اطلاعاتو او خبرتیا په معنا او مفهوم ده. علم او پوهه هغه رڼا ده چې تل یې په ټولنه کې د بشري گمراهیو د تیارو سره مقابله کړې ده او د ناپوهیو تورتم گوټونه یې په خپلو وړانگو باندې روښانه کړي دي او د ناپوهۍ او نادانۍ تورې تیارې یې له منځه وړي دي. په نړۍ کې چې څه پرمختگونه شوي او یا کېږي، هغه ټول د پوهنې له برکته دي او داچې ځینې هېوادونه پرمختللي او ځینې وروسته پاتې دي، دا هم د پوهنې د درلودلو او نه درلودلو له امله او ناپوهۍ اغېزې دي. څوک چې د علم او پوهې په گاڼه سینگار وي د هغه مادي او معنوي ژوند هم ښکلی او سینگار وي. لوی خدای جل‌جلاله د پوه او ناپوه ترمنځ د توپیر په اړه داسې فرمایي: (ایا هغه کسان چې پوهېږي، له هغو کسانو سره چې نه پوهېږي برابر دي.) نه، هېڅکله! د علم او پوهې خاوندان لومړی خپل ځان او بیا خپل خالق پېژني پوه او هوښیار خلک د ښه او بد د توپیر په اړه سم او پر ځای قضاوت کولی شي. د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایي: (له زانگو څخه تر گوره پورې د علم زده کړه وکړئ.) بل ځای داسې فرمایي: (څوک چې د پوهنې د زده کړې لپاره له کور څخه ووځي او د هغه دغه عمل تر بېرته راستنېدو پورې د خدای جل‌جلاله په لار کې دی.) یعنې ټول یې په ښیگڼو او ثواب کې شمېرل کېږي. همدارنگه افلاطون د پوهې د زده کړې په اړه داسې وایي: ((هغه خوند چې له علم او پوهنې څخه سړي ته حاصلېږي ډېر پاک او سپېڅلی خوند دی.)) سقراط یوناني فلسفي او حکیم بیا داسې وایي: د دولت په وسیله کتابونه ترلاسه کېدای شي، خو علم نه. سقراط بیا وایي: خپل وخت د خپل نفس د اصلاح لپاره د گټورو آثارو په لوستلو صرف کړه او علم ته پر مال ترجیح ورکړه. |

## خلورم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **کتاب** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ زده کوونکي به د کتاب په ارزښت وپوهیږي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د متن اصلي مطلب به درک کړي.<br>- د متن مفهوم او مطلب به په خپله ژبه ووایي.<br>- نوي لغتونه به معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي.<br>- د ګروپي فعالیتونو په سر ته رسولو کې به کنجکاوي او علاقمندي وښیي.<br>- د کتاب په ارزښت به پوه او ساتنې ته به يې پاملرنه وکړي. |
| انګیزوي پوښتنې | - تاسو څه فکر کوئ چې په پخوا زمانو کې به هم کتاب موجود و؟<br>- په تېرو زمانو کې چې کتاب نه و، زموږ پلرونو به کېسې څنګه زده کولې؟<br>- وروسته بیا خلکو څه فکر وکړ چې لیکنې يې تر ډېره وخته پورې پاتې شي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ـ ښوونکی دې د لوست متن په لوړ او مناسب آواز ولولي، کلمې دې په سم تلفظ ادا کړي او د لوست مفهوم دې په ساده ژبه زده کوونکو ته تشریح کړي.

ـ ښوونکی دې له دوو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپل وار سره ( نښې ـ پیړۍ ـ پلرونه) کلمې د خپلو ټولګیوالو په وړاندې په سم تلفظ سره ووایي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

ـ ښوونکی دې له هرې ډلې له یوه تن زده کوونکي څخه وغواړي چې د متن جملې پرتختې د املا په ډول ولیکي او ښوونکی دې د نیمګړتیا په صورت کې پوره مرسته وکړي.

ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې هر یو په وارسره د درس په اصلي مطلب خبرې وکړي او یو تن زده کوونکی دې د خپلې ډلې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې نوی متن په سمه توګه ولولي او د نیمګړتیا په صورت کې دې خپله ښوونکی مرسته وکړي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې لوستل شوی متن په خپلو ډلو کې یو بل ته املا ووایي، ښوونکی څارنه کوي او د نیمګړتیا په صورت کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.

څو زده کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راوغواړئ چې هر یو خپل نوم، د پلار نوم، د ښوونځي او ټولګي نوم واخلي او ودې وایي چې زه په راتلونکی کې غواړم.....شم ښوونکی دې پوره مرسته کوي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک متن په سمه توګه د کتاب له مخې لوستلای شي؟<br>ـ څوک د متن په معنا او مفهوم خبرې کولای شي؟<br>ـ څوک کولای شي چې د لوست څخه څو کلمې معنا او بیا یې د تختې پرمخ ولیکي؟ |

| کورنۍ دنده | زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د لوستل شوي متن مفهوم په خپله ژبه په څو کرښو کې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| --- | --- |
| اضافي معلومات | ښوونکی دې زده کوونکو ته په ټولنه کې د کتاب د ګټو او ارزښت په اړه لارښوونې وکړي کتاب د یوه انسان لپاره د ډېر نژدې ملګري حیثیت لري. همدارنګه لوی خدای جل جلاله د خپلو بنده ګانو د لارښوونې لپاره یو داسې سپېڅلی کتاب چې قرآن کریم دی د خپل پیغمبر حضرت **محمد** صلی الله علیه وسلم په وسیله را واستولو چې انسانان ترې څه زده کړي او په خپل ژوند کې یې پلي کړي. په اوسنۍ نړۍ کې ډېر ارزښتمن علمي، معلوماتي، تاریخي، تربیتي او...کتابونه چاپ او د انسانانو مخصوصاً د پوهې او علم خاوندانو لپاره تیار شوي دي.د کتابونو په لوستلو سره د انسان علم او پوهه زیاتېږي، د کتابونو د مطالبی له برکته بیا په دیني، علمي او نورو برخو کې ښه قضاوت کولای شي. د کتاب په لوستلو سره د انسان (نارینه او ښځینه) په فکر او دماغ کې مثبت نوښتونه او بدلونونه رامنځ ته کېږي او له بد مرغیو څخه یې ژغوري. |

## پنځم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **ښوونکی** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د ښوونکي او د هغه د دندې په ارزښت به وپوهیږي.<br>ـ د ښوونکي د مقام په اړه به خبرې وکړای شي.<br>ـ د نوي لوست متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د نوو لغتونو معنا به ووایي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>– کلمې او جملې به د املا په توګه سمې ولیکلای شي.<br>– د ښوونکو د ویناوې کولو روحیه به په دوی کې پیاوړې شي. |
| انګیزوي پوښتنې | ستاسو په فکر، ولې ښوونکی پر موږ باندې د مور او پلار په شان حق لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ښوونکی دې د بسم الله الرحمن الرحيم په ویلو نوی درس په سم تلفظ او مناسب آواز ولولي او لغتونه دې له معناوو سره پرتختې ولیکي، ددرس اصلي موخه او مفهوم دې په روښانه ټکو کې زده کوونکو ته بیان کړي.

ـــ بیا دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې پرتختې لیکل شوي لغتونه له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـــ ښوونکی دې زده کوونکي وګماري چې په خپلو ګروپونو کې نوی لوست په چوپتیا یو د بل په مرستې ولولي، بیا دې له هر ګروپ څخه یو یو زده کوونکی پورته شي او نوی لوست دې ولولي او څو تنه نور دې خپل ځانونه معرفي کړي.

ـــ له دې وروسته دې د ګروپونو یو یو تن زده کوونکي ته دې بلنه ورکړي چې د ښوونکي په اړه دې خبرې وکړي.

ـــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې له چوکاټ څخه د ځینوکلمو هم معنا کلمې پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي، خپله ښوونکې دې په ګروپونو وګرځي او د زده کوونکو له کار څخه دې څارنه وکړي.

زده کوونکې دې د متن جملې یو بل ته املا ووایي.

څو زده کوونکي دې په وار سره په متن کې درې حرفي او څلور حرفي کلمې پیدا او د تختې پر مخ دې ولیکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـــ د متن مفهوم څه و څوک پرې خبرې کولای شي؟<br>ـــ څوک متن سم او روان لوستلای شي؟<br>ـــ څوک کولای شي چې له لوستل شوي متن څخه څو لغتونه پر تخته ولیکي او بیا یې معنا کړي؟<br>ـــ څوک ویلای شي ووایي چې له درس څخه مو څه نتیجه واخېسته؟ |
| کورنۍ دنده | ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د ( ښوونکي ـــ لیک او لوست ـــ درناوی) کلمې لومړی په جملو کې وکاروي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

| ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته په ټولنه کې د ښوونکي د سپېڅلې دندې او مقام په هکله داسې لارښوونې وکړي چې لوی خدای جل‌جلاله د بشریت د نېکمرغۍ او سوکالۍ او د انسان د ژوند د اصلي موخې او لارښوونې لپاره ډېر پیغمبران د ښوونکي په توګه رالېږلي دي چې انسان له ګمراهۍ، بدمرغۍ او ناپوهۍ له تورو تیارو څخه وژغوري او د یوه روښانه او نېکمرغه ژوند په لور یې لارښوونه وکړي، نو ځکه وایو چې ښوونکی د بشري ټولنې لارښود او فکرونو روزونکی دی. څرنګه چې مور او پلار د خپلو ماشومانو روزنه او پالنه کوي، دغه راز ښوونکی هم د ماشومانو او ځوانانو ښوونه او روزنه په غاړه لري، ښوونکی دی چې انسان ته د انسانیت درس ورکوي او د خپلې تجربې او پوهې په وسیله د هغه د معنوي ژوند روزنه کوي او په پای کې لکه سقراط، افلاطون، خوشحال خان او داسې نورو سترو شخصیتونو په څېر انسانان ټولنې ته وړاندې کوي. | اضافي معلومات |
|---|---|

**شپږم لوست**

**د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه**

| د لوست موضوع | **ملي يووالی** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د يووالي په معنا، مفهوم او ارزښت به وپوهېږي.<br>ــ نوی لوست به په روانه توګه ولوستلای او مطلب به يې په خپله ژبه ووايي.<br>ــ د دغه شعر په لوستلو سره به د يووالي روحيه پکی پياوړی شي.<br>ــ د نوو لغتونو معنا به وويلای شي او هغه به په جملو کې وکاروي.<br>ــ د ملي يووالي په ګټو او اړتيا به پوه او په خپل ژوند کې به يې د عملی کولو په فکر کې شي. |
| انګيزوي پوښتنې | – آيا پوهېږئ چې په ولسونو کې ملي يووالی څنګه منځ ته راځي؟<br>– پوهيږئ چې يووالی يوه ملت ته څه ګټې لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه**<br>ــ ښوونکی دې نوی درس په مناسب لوړ آواز د شعر په بڼه ولولي. زده کوونکي دې د څارنې لاندې ونيسي او بيا دې د شعر مطلب په ساده خبرو کې بيان کړي.<br>ــ ښوونکی دې د لوست نوي لغتونه پر تختې وليکي او هغه دې معنا کړي او له زده کوونکو څخه دې د لغتونو د معنا پوښتنه وکړي.<br>ــ ښوونکی دې د نوي درس يوه يوه کرښه په څو زده کوونکو باندې په وارسره ولولي<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې د ټولګي په وړاندې د درس په مفهوم خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې په خپلو ګروپونو کې د دريم فعاليت کلمې په جملو کې وکاروي، په يو سپين کاغذ کې دې وليکي. بيا دې د هر ګروپ په استازيتوب يو تن زده کوونکی خپلې جملې ولولي.<br>ــ زده کوونکو ته دې لارښونه وکړي چې يو بل ته املا ووايي.<br>ــ څو زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د يووالي په اړه څو کرښې وليکي او د هر ډلې يو استازی دې د خپلې ډلې ليکلې پاڼه نورو ته ولولي | |
| ستونزمنې برخې | |
| د لوست ارزونه | ــ څوک د يووالي (شعر) مطلب او مفهوم بيانولای شي؟<br>ــ څوک په بيتونو کې نوي لغتونه پيدا، هغه معنا او پر تختې ليکلای شي؟<br>ــ ګرانو زده کوونکو ! د يووالي د معنا په پوهېدو سره څه احساس کوئ؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د يووالي په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

| اضافي معلومات | ملي یووالی د ملي اتحاد او پیوستون په معنا دی، زموږ د هېواد ټولو قومونو او ولسونو د تاریخ په اوږدو کې تل د ملي یووالي او ورورګلوۍ په روحیه ژوند کړی دی او کوي یې. زموږ د ګران هېواد افغانستان ټول وګړي (نر او ښځې) ددې هېواد اوسېدونکي دي، ټول افغانان له یووالي، ورورګلوۍ او ګډ ژوند سره د زړه له کومې مینه لري، او په ملي یووالي ویاړي. د ملي یووالي په لرلو سره کېدای شي زموږ د هېواد ټولې ملي شتمنۍ خوندي وي، د ملی یووالي په لرلو سره کولای شو چې خپل هېواد د پرمختګ په لوري بوځو او همدارنګه نړۍ ته خپل ځان، کلتور او فرهنګ ور وپېژنو. |
|---|---|

## اووم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **مور او پلار** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د مور او پلار حقونه به وپيژني.<br>ــ د متن سم لوستل او ليکل به وکړای شي.<br>ــ نوي لغتونه به معنا او په جملو کې وکاروي.<br>ــ د مور او پلار د حقونو په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– د نوي لوست جملې او کلمې به د املا په توگه وليکلای شي.<br>– د متن په لوستلو سره به په دې پوه شي چې د مور او پلار د حقونو ادا کول او هغوی ته درناوی د دوی ايماني دنده ده. |
| انگيزوي پوښتنې | – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د درس په اړوند څو هڅوونکې پوښتنې وکړي لکه:<br>– ستاسو په فکر مور او پلار پر موږ کوم حقونه لري؟ــ کوم کارونه وکړو چې د مور او پلار د خوښۍ سبب وگرځي؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ــ ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي بيا دې توضيح او تشريح کړي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په وار سره متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.

ــ زده کوونکي دې د لارښوونې سره سم په خپلو ډلو کې له يو بل سره د مور او پلار د حقونو په اړه خبرې وکړي او بيادې د هرې ډلې څخه يو تن راشي او خپل معلومات دې نورو ته وړاندې کړي.

ــ زده کوونکي دې د لارښوونې سره سم د چوکات کلمې هجا کړي او د نيمگرتيا په صورت کې دې ښوونکی مرسته وکړي.

ــ ښوونکی دې په څو زده کوونکو په وار سره په متن کې د جمع کلمې پيدا او پر تختې دې وليکي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک ويلای شي چې مور او پلار په تاسو کوم حقونه لري؟<br>ــ څوک متن سم او روان لوستلای شي؟<br>ــ څوک به ووايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مور او پلار په اړه څه ويلي دي؟<br>ــ څوک کولای شي د مور او پلار د حقونو په هکله يوه ښکلې جمله د تختې پرمخ وليکي؟ |
| کورنۍ دنده | |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | مور او پلار پر خپلو اولادونو ډېر حقونه لري. د مور او پلار درناوی او له هغوی سره نېکي کول او د ژوند په ټولو چاروکې ورسره مرسته کول د انسانیت او مسلمانۍ له لوړو اخلاقو څخه دي، الله جل‌جلاله فرمايي: (تاسې د مور او پلار په مخکې د (اُف) کلمه هم مه وایئ) چې زړه يې له تاسو څخه ناراضه نشي. که د مور او پلار زړونه ناراضه شي، نو څرګنده ده چې لوی خدای جل‌جلاله به هم ناراضه وي. د الله جل‌جلاله رضا هم د مور او پلار په رضا کې ده. د اسلام ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايي: جنت د مور تر قدمونو لاندې دی. همدارنګه بل حدیث دې چې وایي: (له خپلو میندو او پلرونو سره ښه سلوک وکړئ، ستاسې اولادونه به هم له تاسې سره ښه سلوک وکړي. |

## اتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **د مطالعې ګټه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د مطالعې او د هغې په ارزښت به وپوهېږي<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د لوست اصلي مطلب به درک او عملاً به مطالعې ته وهڅول شي.<br>ـ د نوي لوست محتوا به نورو ته بیان کړای شي.<br>– د مطالعې پر اهمیت به پوه او د مطالعې کولو روحیه به پکی پیاوړې شي. |
| انګیزوي پوښتنې | – څه فکر کوئ چې مطالعه څه ګټې لري؟<br>– تاسو د مطالعې په معنا او دا چې څرنګه مطالعه وکړو پوهېږئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ـــ ښوونکی دې د بسم الله الر حمن الرحیم په ویلو سره متن په سم تلفظ او مناسب آواز ولولي،ښوونکی دې د لوستلو په بهیر کې زده کوونکي وڅاري چې متن ته متوجه دي او که نه؟

ـــ ښوونکی دې د لوست متن په زده کوونکو په وار سره ولولي، خو کمزورو زده کوونکو ته دې زیاته برخه ورکړي او د نیمګړتیا په صورت کې دې ورسره پوره مرسته وکړي.

ـــ ښوونکی دې څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په متن کې هم معنا کلمې پیدا او پر تختې دې ولیکي، ښوونکی دې د هم معنا کلمو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړي او مثالونه دې پرتختې ولیکي.

ـــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوست نوي لغتونه په جملو کې استعمال کړي.

ـــ ښوونکی دې د غلطۍ په وخت کې د دوی تېروتنې ورته اصلاح کړي.

ـــ ښوونکی دې د متن له مخې زده کوونکوته املا ووایي.

ـــ ښوونکی دې د لوست په مطلب خبرې وکړي.

ـــ څو تنه زده کوونکو دې په وار سره په دې اړه خبرې وکړي: ((موږ څنګه کولای شو د مطالعې په وسیله د پوهې خاوندان شوم.

ـــ ښوونکی دې په زده کوونکو باندې د لوستل شوي متن جملې د املا په ډول ولیکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | څوک کولای شي چې متن سم او روان ولولي؟<br>ـــ څوک د متن په مطلب خبرې کولای شي؟<br>ـــ له تاسو څخه څوک په متن کې داسې کلمې پیدا او بیا یې ضد له یاده ویلی شي؟<br>ـــ څوک د متن جملې سمې لیکلای شي؟<br>ـــ له درس څخه مو څه نتیجه واخېسته؟ |

| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د مطالعې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي. |
| --- | --- |
| اضافي معلومات | لکه څنګه چې څرګنده خبره ده مطالعه د انسان له مغزو څخه د ناپوهۍ پردې لرې کوي او پر ځای یې له پوهې، معلوماتو او اطلاعاتو څخه مو خبروي. د مطالعې په واسطه انسان د ښو او بدو عملونو توپير کولای شي. لکه څنګه چې پوهانو ویلي دي: که غواړئ پوه شئ ډېره مطالعه وکړئ. مطالعه مو دې ته هڅوي چې د علم او پوهې خاوندان شو، د نړۍ ټول پرمختګونه او نوښتونه چې شوي او یا کېږي ټول د مطالعې او څېړنو له برکته دي. د مطالعې له برکته انسان فضا، سپوږمۍ او ستورو ته خيږي، مطالعه د انسان دماغي ځواک ته وده ورکوي چې وکولای شي د خپل هېواد ویده ولسونه راويښ کړي. همدارنګه مطالعه انسان له خپلو مسوولیتونو څخه خبروي او هغه ته سمه لارښوونه کوي، همداراز مطالعه ده چې موږ خپل ځان او خپل لوی پروردګار(ج) پېژنو، له خپل رب سره اړیکې ټینګوو، د اسلام د سپېڅلي دین په هکله معلومات ترلاسه کوو او په لارښوونو یې عمل کوو، نو له دې امله لوی خدای (ج) په قرآن عظیم الشان کې د پوهې او مطالعې په اړه ټینګار کړی چې د پوهې او مطالعې په وسیله د خپل ژوند غوره لاره پیدا کړئ او په هغې لارې باندې روان شئ. |

## نهم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

<table>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td>رښتیا ویل</td></tr>
<tr><td>د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي</td><td>زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د رښتیا ویلو په ارزښت او گټو به پوه شي او رښتیا ویل به د ځان عادت وگرځوي.<br>ـ د رښتیا ویلو په گټې او د دروغو په زیانونوبه خبرې وکړای شي.<br>– متن به په روانه توگه ولوستلای او ولیکلای شي.<br>– د لوست په پوهېدوسره به په دې روحیه وروزل شي چې رښتیا ویل د انسان عزت او شخصیت په خلکو کې لوړوي.</td></tr>
<tr><td>انگیزوي پوښتنې</td><td>– ستاسو په فکر رښتیا ویل څه ارزښت او گټې لري؟</td></tr>
<tr><td colspan="2">د ښوونکي فعالیتونه<br>ـ ښوونکی دې نوی درس د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو په مناسب لوړ غږ ولولي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې نوی لوست د څو شېبو لپاره په چوپتیا ولولي او بیا دې په څو زده کوونکو په وار سره د ټولگي په مخکې ولولي.<br>ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د نوو لغتونو په اړه پوښتنې وکړي زده کوونکي دې په وارسره خپل لغتونه ښوونکي ته ووايي او ښوونکی دې پرتختې ولیکي او هغه دې معنا کړي.<br>ـ ښوونکی دې ددرس په مفهوم خبرې وکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې په تختې باندې لیکل شوي لغتونه له معناوو سره په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.<br>ـ ښوونکی دې په خپله خوښه په دوو دوو تنو زده کوونکو نوی درس د کتاب له مخې ولولي او له نورو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د لوست په مفهوم خبرې وکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن ټاکل شوې کرښې په خپلو گروپونو کې یو بل ته املا ووايي. ښوونکی دې له هر گروپ څخه څارنه وکړي او د تېروتنو په وخت کې دې پوره مرسته وکړي.<br>ـ له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د ټولگي په مخکې خپل ځانونه معرفي، بیا دې د ریښتیا ویلو په گټو او د درواغو ویلو د زیانونو په اړه خبرې وکړي.<br>ـ ښوونکی دې څو زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي چې له متن څخه دوه حرفي او درې حرفي کلمې پیدا او هغه دې په تختې ولیکي.</td></tr>
<tr><td>ستونزمنې برخې</td><td></td></tr>
<tr><td>د لوست ارزونه</td><td>ـ څوک به د رښتیا ویلو په اړه خبرې وکړي؟<br>ـ څوک د درس مفهوم او مطلب په خپله ژبه بیانولای شي؟<br>ـ څوک متن سم او روان لوستلای شي؟</td></tr>
</table>

| | |
|---|---|
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په دې هکله څوکرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>مور، څنګه کولای شو چې ريښتنې واوسو او ريښتيا خپل عادت وګرځو؟ |
| اضافي معلومات | هغه څه چې په خلکو او ټولنه کې د انسان عزت، آبرو او اعتبار ساتي هغه رښتيا او رښتينوالي دی. رښتيا ويل د ښو او رښتينو مسلمانانو کار دی. ښه انسان همېشه د رښتيا ويلو پلوی دی او هېڅکله نه غواړي چې د ژوند په ټولو لارو چارو اوکارونو کې دروغ ووايي، لکه چې وايي: هرڅه چې اومه وي هغه پخېږي، خو انسان چې خام شي بيا نه پخېږي، له دې وينا څخه دلته د انسان له خامۍ څخه مطلب دروغ ويل او په دروغو مشهورېدل دي. په دې اړه متل دی چې وايي( د دروغو مزل لنډ دی). څوک چې رښتيا وايي هغه د لوی خدای(ج) په نزد هم د درنښت وړ وي او هم د وګړو تر منځ د ښه نوم او عزت خاوند ګرځي. |

## لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **کلمه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د کلمې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ د کلمو ډولونه به وپېژني او متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ په لوستلو او لیکلو کې به کلمې سمې وکارولای شي.<br>ـ په ژبه کې به د کلمو په ارزښت وپوهیږي او هره کلمه به په مناسب ځای کې وکارولای شي. |
| انګیزوي پوښتنې | – آیا تاسو د کلمې نوم اورېدلی او پوهېږئ چې کلمه څه معنا لري؟<br>– څه فکر کوئ چې ټولې کلمې به یو شان وي؟<br>– کله مو په خپلو خبرو اترو کې له کلمو څخه کار اخیستی؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ـ ښوونکی دې نوی درس په مناسب آواز ولولي.

ـ ښوونکی دې د نوي درس په مفهوم او معنا خبرې وکړي او هغه دې توضیح او تشریح کړي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي، له هر ګروپ څخه دې د خپلواکو او نا خپلواکو کلمو مثالونه وپوښتي او د هر ګروپ استازی دې د ټولګي په وړاندې نورو ته خپل معلومات وړاندې کړي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې نوی درس چوپتیا سره ولولي او وروسته یې په څو تنو په لوړ او مناسب آواز ولولي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د متن جملې یو بل ته املا ووایي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

۱ـ کلمه هغه کوچنی ژبنی توکی دی چې ........

۲ـ کلمه په دوو لویو برخو وېشل شوي چې .......

۳ـ نا خپلواکې کلمې هغه دي چې .......

ـ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې د تختې مخې ته راشي، هر یو دې له خپل فکر څخه یوه جمله پر تختې ولیکي، خپلواکې او نا خپلواکې کلمې دې پکې وښیي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک د متن په مفهوم خبرې کولای شي؟<br>ـ څوک به ووایي چې د نن ورځې لوست کومې ګټې لري؟<br>ـ څوک د کلمې او د هغه په ډولونو وپوهیدل؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په هغو کې دې خپلواکې او نا خپلواکې کلمې پیدا کړي. |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | کلمې هغه کوچنی ژبنی لفظ دی چې ځینې یې په خپله پوره معنا او خپلواک مفهوم لري لکه: کتاب، قلم، څوکی، نجلی، هلکان اوځینې په یوازې توگه معنا نه ورکوي، خو د جملو د معنا په بشپړولو کې لویه برخه لري، لکه: له، سره، کې،څخه، په.<br>کلمې د معنا له مخې په دوو برخو وېشل کېږي: خپلواکې او ناخپلواکې کلمې خپلواکې کلمې: هغه کلمې دي چې په خپله معنا ولري او په هغو کې ټول نومونه، قیدونه، صفتونه او نور راځي. نومونه د انسانانو نومونه، د حیواناتو نومونه، د الوتونکو نومونه، د شیانو نومونه دي. قیدونه هم ډېر ډولونه لري. تاسې ښوونکي ته لازمه ده چې د کلمو د ډولونو په اړه لازم او پوره معلومات ولرئ.په تدریس کې زده کوونکو ته غوره او په زړه پورې مثالونه وړاندې کړئ، همدارنگه له زده کوونکو څخه هم د کلمو د ډولونو په اړه مثالونه وغواړئ چې دری ژبې زده کوونکي په پښتو ژبه کې د کلمو د ډولونو په اړه نومونه، صفتونه او قیدونه وپېژني. |

## يوولسم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **مېوې او سابه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د مېوو او سبو په گټو به وپوهيږي.<br>ــ متن به سم او روان ولوستلای او ليکلای شي.<br>ــ په پښتو ژبه به د مېوو او سبو د گټو په هکله خبرې وکړای شي.<br>ــ د متن په لوستلو سره به د ميوو او سبو په اړتيا او غذايي ارزښت وپوهيږي او خپلې د روغتيا په فکر کې به شي. |
| انگيزوي پوښتنې | − ستاسو په فکر مېوې او سابه زموږ د وجود لپاره څه غذايي ارزښت لري؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ــ ښوونکی دې دنوي لوست عنوان ( مېوې او سابه) پرتختې وليکي.
ــ ښوونکی دې متن په سم تلفظ او مناسب آواز ولولي او بيا دې په مطلب خبرې وکړي.
ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه په وارسره وغواړي چې د مېوو او سبو د گټو په هکله خبرې وکړي.
ــ ښوونکی دې د متن له مخې پر زده کوونکو د املا کار وکړي او تېروتنې دې ورته اصلاح کړي.
ــ ښوونکی دې په دوو يا دريو تنو زده کوونکو په خپل وارسره لوست د کتاب له مخې ولولي او د اړتيا په وخت کې دې ښوونکی ورسره مرسته وکړي.
ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن لغتونه معنا او بيا دې ورته مناسبې جملې جوړې کړي.
ــ ښوونکی دې د مېوو او سبو درس د سوال او ځواب په ډول په دوو دوو زده کوونکو باندې تکرار کړي.
زده کوونکو ته دې سپارښتنه وکړي چې په متن کې مترادفې کلمې پيدا او بيا دې د تختې پر مخ وليکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک به د مېوو او سبو د گټو په اړه لنډې خبرې وکړي؟<br>ــ په تاسو کې به څوک د مېوو او سبو د گټو مترادفې کلمې پر تختې وليکي؟<br>ــ د متن له لوستلو څخه مو څه نتيجه ترلاسه کړه؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د مېوو او سبو په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## دولسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **ښه زده کوونکی** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د نظم مطلب به درک کړي او د ښو زده کوونکو په صفاتو به وپوهیږي.<br>ـ د نویو لغتونو معنا به ووایي او په مناسبو جملو کې به یې وکارولای شي.<br>– نوی لغتونه به د املا پر ډول ولیکلای شي.<br>ـ د نظم په مفهوم او مطلب به خبرې وکړای شي.<br>– د دې لوست په لوستلو سره به په داسې روحیه وروزل شي چې ښه زده کوونکي واوسی. |
| انګیزوي پوښتنې | – ستاسو په فکر ښه زده کوونکي کوم صفتونه لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>ــ ښوونکی دې د نوي لوست عنوان ( ښه زده کوونکی) پرتختې ولیکي او بیا دې په لوړ او مناسب آواز ولولي او وروسته د لوست مفهوم توضیح او تشریح کړي.<br>ــ ښوونکی دې نوی لوست په څو تنو زده کوونکو په وارسره ولولي او د ستونزمنو کلمو په تلفظ کې دې له هغوی سره مرسته وکړي.<br>ــ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپل وارسره د ټولګي مخې ته راشي او د ښه زده کوونکو په اړه دې خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په لاندې کلمو کې د جمع کلمې په نښه کړي. تختې – هیواد – عرفان – ملګري – نژند | |
| ستونزمنې برخې | |
| د لوست ارزونه | ــ څوک کولای شي چې د لوست په مطلب لنډې خبرې وکړي؟<br>ــ څوک کولای شي چې د ( هېواد، ښوونځی، مدام ) کلمې په جملو کې وکاروي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې نظم په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| اضافی معلومات | ښه او زیار کښه زده کوونکي همېشه د علم او پوهې د ترلاسه کولو په فکر کې وي، زموږ د هېواد ټول زده کوونکي (نجونې او هلکان) د پوهنې وزارت له غوښتنو سره سم باید سم وروزل شي او په ښوونځیو کې بېلابېل علمي، دیني، فرهنګي، معلوماتي، تاریخي او داسې نور اثار چې له مطالعې څخه یې زده کوونکي پوهه او معلومات ترلاسه کوي ورته چمتو شي، ښوونکی باید زده کوونکي په نظري او عملي درسونوکې په کار واچوي او په داسې عالي روحیې باندې یې سمبال او وروزي چې وکولای شي خپلې ورځینۍ چارې په ښه زغم او ښه تدبیر سره ترسره کړي. زده کوونکي باید مؤدب، حق پالونکي او مسوولیت پذیره وروزل شي، ترڅو وکولای شي د خپلو مشرانو، مور او پلار، ښوونکو، ګاونډیانو او... نورو حقونه لکه څنګه چې د اسلام په سپېڅلي دین کې پرې ټینګار شوی وپېژني او د هغوی درناوی پر ځان لازم وګڼي. همدارنګه خپل ارزښتناکه وخت چې د سرو زرو په شان ارزښت لري خوشې او بې ځایه تېر نکړي او هر وخت د علم او زده کړې د حاصلولو په لټه کې وي. ارسطو یوناني فیلسوف وایي: څوک چې د علم د زده کړې زحمت نشي ګاللی، ټول عمر به د ناپوهۍ په تیارو کې تیندکونه خوري. |

## دیارلسم لوست

### د تدریس لارښود پلان

### د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | غوره وېناوې |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ــ د غوره وېناوې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ــ د غوره وېناوې مطلب به درک او بيان کړای شي.<br>ــ د نوو لغتونو معنا به ووايي او په جملو کې به يې وکارولای شي.<br>ــ د غوره وېناوې له اورېدو او زده کولو سره به يې مينه پيدا او په ژوند کې به پرې عمل وکړي.<br>ــ د لوست په پوهيدو سره به دې ټکي ته متوجي شي چې له پندونو څخه د خپل ژوند برياوو لپاره د سر مشق په توګه ګټه واخلي. |
| انګيزوي پوښتنې | – ستاسو په فکر غوره وېناوې څه ته وايي؟<br>– تاسو کله له چا څخه غوره وېناوې اورېدلې دي؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ــ ښوونکی دې د نوي لوست عنوان (غوره وېناوې) پر تختې وليکي او بيا دې نوی لوست د بسم الله الرحمن الرحيم په ويلو سره په سم تلفظ او مناسب آواز ولولي، د درس په مطلب دې رڼا واچوي او نوي لغتونه دې معنا او پر تخته دې وليکي.

ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپلو ګروپونو کې متن په چوپتيا ولولي او په مفهوم دې خبرې وکړي او بيا دې د هر ګروپ يو تن زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي ترڅو نورو زده کوونکو ته د لوست په اړه خبرې وکړي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپلو ګروپونو کې د لوستل شوي متن جملې يو بل ته املا ووايي

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لاندنيو کلمو متضادې کلمې پيدا او په کتابچو کې دې وليکي (ګټه – ژوند – دوستي ــ ناپوه ــ دوستان ــ ځواب).

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک په د متن جملې سمې او روانې ولولي؟<br>ــ څوک د متن په مطلب او مفهوم خبرې کولای شي؟<br>ــ څوک به نوي لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي؟<br>ــ د پندونو د لوست له ويلو وروسته مو څه نتيجه واخيسته؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې متن او ددغو غوره وېناوې په شان ځينې نورې وېناوې اوريدلې وي په خپلو کتابچو کې وليکي. |

| اضافی معلومات | د اسلام د سپېڅلي دين اساسات پر علم او زده کړې ولاړ دی او همدغه علم او پوهه ده چې انسانيت ته د نېکمرغۍ او سوکالۍ زيری ورکوي، بشريت د محکوميت او ناپوهۍ له تورو تروږمیو څخه د پوهې او خپلواکۍ روڼ سباوون ته راباسي او د انساني کرامت او بشري عواطفو لوړو پوړو ته يې خېژوي. ددې تر څنګ عالمان او پوهان همېشه د انسان د اصلاح لپاره غوره علمي، ديني او اخلاقی لارښوونې کوي، پندونه د پوهانو او عالمانو د فکر، پوهې او تجربو څخه راپاتې دي. پندونه د مرغلرو په څېر په خپله ټولنه کې خپل ارزښت او اهميت لري. پندونه يا غوره وېناوې زياتره د اخلاقي، علمي او ديني موضوعاتو څرګندونه کوي چې هر لوستونکي ته د ژوند لپاره عبرت دي.الله جل‌جلاله د سپېڅلي کتاب (قرآن کريم) پيل په ( اقرأ) کړی او ځای پر ځای پکې د علم او پوهې يادونه او ستاينه شوېده، انسان ته اشرف المخلوقات ويل شوی او د عالم مرګ د عالم په مرګ توجيه شوي. د الله جل‌جلاله ټولو پيغمبرانو، د حقلارې پيروانو او عالمانو چې څه ويلي، عمل يې هم پرې کړی دی، عالم چې په خپل علم عمل کړی، د خلکو مقتدا او لارښود ګڼل شوی دی. قرآن اعظيم الشان د الهي ارشاداتو مجموعه ده چې د انسانانو د لارښوونې لپاره رانازل شوی دی، په حقيقت کې قرآن کريم د ورمونو او پندونو يو داسې کامل کتاب دی چې په لوستلو يې انسان د انسانيت، کرامت، شرافت او نور...درسونه زده کوي. |
|---|---|

## څوارلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **ترافیکي لارښوونې** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي او ولیکلای شي.<br>ـ ترافیکي اشارې به وپېژني او په لارښوونو به یې عمل وکړي.<br>– د نویو لغتونو معنا به ووایي او په جملو کې به یې وکارولای شي.<br>– په دې به وپوهېږي چې د ترافیکي لارښوونو او ا شارو په پام کې نیول انسان له ترافیکي پېښو څخه ژغوري. |
| انګیزوي پوښتنې | – آیا د ترافیکي اشارو په هکله څه ویلای شئ؟<br>– تاسو د پورته انځورونو په هکله څه اورېدلي دي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ـ ښوونکی دې د ترافیکي اشارو ځینې عکسونه او انځوریز چارټونه چې مخکې له مخکې یې چمتو کړي دي د تختې پرمخ وځړوي، او زده کوونکو ته دې موقع ورکړي چې پرې خبرې وکړي.

ـ بیا دې په خپله لوست په سم تلفظ ولولي، وروسته دې په زده کوونکو څو ځلې ولولي چې د لوستلو مهارت یې پیاوړی شي.

ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د تختې له مخې لیکل شوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او یو د بل په مرسته دې ورته جملې جوړې کړي.

ـ ښوونکی دې څو زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته وغواړي او دلوست له مخې دې څو کلمې ورته ووایي او زده کوونکي دې پرتختې ولیکي او بیا دې په جملو کې استعمال کړي.

ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه په وارسره وغواړي چې د ترافیکي اشارو په ارزښت خبرې وکړي.

ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې څو ترافیکي اشارې په خپلو کتابچو کې رسم او بیا دې ورته نمونه ولیکي، همدارنګه څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي چې د څو رنګونو نمونه پر تختې ولیکي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک کولای شي د ترافیکي اشارو په اړه نورو ته معلومات ورکړي؟<br>ـ څوک کولای شي متن سم او روان ولولي؟<br>ـ څوک د تختې پرمخ لیکل شوي لغتونه معنا اوبیا ورته جملې جوړولی شي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې څو کرښې په دې اړه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې: له سړک څخه د کومې اشارې په وخت تېرېدلای شو؟ |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | په ټولنيز ژوند کې ترافيکي قانون او مقررات ډېر ارزښت او اهميت لري. ددې لپاره چې په ټولنيز ژوند کې انسانان او موټر چلوونکي له ترافيکي پېښو سره مخامخ نشي او ترافيکي نظم له منځه لاړ نشي،نو په هره ټولنه کې يولړ ترافيکي اشارې، لارښوونې او مقررات موجود دي چې د همدغو مقرراتو او اشارو په پام کې نيولو سره په ټولنه کې ترافيکي نظم منځته راځي. په عمومي سړکونو او څلور لارو کې ځينې نښې او علامې موجودې وي چې هره اشاره او نښه ځانته ځانګړې معنا او مفهوم لري. د ترافيکي اشارو هره علامه د عامو خلکو او موټر چلوونکو لپاره ښه او ځانګړې لارښوونه ده. دا نښې د ترافيکي نښو په نامه يادېږي لکه: سور، ژېړ او شين څراغ همدارنګه له سړک څخه د تېرېدو نښه، د پام کولو نښه، د نه تېرېدو نښه، د موټرونو د تم نښه او داسې ډېرى نورې نښې موجودې دي. د نړۍ په زياترو پرمختللو هېوادونو کې اوس مهال ترافيکي مقررات او نښې نښانې ټولې د کمپيوټرونو په وسيلې اداره کېږي. کله چې کومه ترافيکي پېښه وشي،نو سمدلاسه نومورې پېښه د کمپيوټر په واسطه ليدل کېږي او ترافيکي مؤظفين ځانونه د پېښې ځاى ته رسوي. لنډه دا چې ترافيکي قانون او د هغه لارښوونې په ټولنيز ژوند کې مهمه او با ارزښته اړتيا ده. |

## پنځلسم لوست

### د تدریس لارښود پلان

### د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ټوکه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـــ د ټوکې مطلب به درک او بيان کړي.<br>ـــ ټوکه به سمه او روانه ولوستلای او مفهوم به يې په خپله ژبه وويلای شي.<br>ـــ د نويو لغتونو معنا به ووايي او په جملو کې به يې وکارولای شي. |
| انګيزوي پوښتنې | - تاسو له ټوکو سره مينه لرئ او کومه ټوکه ويلی شئ؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ـــ ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي له تنظيم څخه وروسته حاضری اخلي او د زده کوونکو کورنۍ دنده په نښه کوي، د يوې تکړه زده کوونکې کورنۍ دنده پرتخته ليکي او نورو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلې کورنۍ دندې د تختې له مخې اصلاح کړي.

ـــ ښوونکی بيا د ټوکې جملې په څو زده کوونکو وار په وار لولي او په لوستلو کې پوره مرسته کوي.

ـــ ښوونکی دې د لوست متن په لوړ او مناسب آواز ولولي او بيا دې د ټوکې په اصلي مطلب رڼا واچوي.

ـــ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وېشي او له هرې ډلې څخه دې وغواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوستل شوې ټوکې په مطلب دې خبرې وکړي.

ـــ ښوونکی دې له هرې ډلې څخه وغواړي چې په لوستل شوي متن کې متضادې کلمې پيدا او پر تختې يې وليکي، ښوونکی د اړتيا په صورت کې مرسته کوي.

ـــ ښوونکی دې د کلمو ليکلي کارتونه په ګروپونو باندې وېشي او له هر ګروپ څخه دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راوغواړي، يوه تن ته دې لارښوونه وکړي چې يو کارت پورته کړي او هغه دې ولولي او بل تن زده کوونکي ته دلې ووايي چې کلمه پر تختې وليکي، نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

ـــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو منځو کې په دې اړه مشوره وکړي چې (هره ټوکه ولې ځانته وخت او مناسب ځای لري.) بيا دې يو تن خپله ليکل شوې پاڼه نورو ته ولولي، او بيا دې يو تن په خپله خوښه يوه ټوکه ووايي

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـــ څوک په متن کې څو متضادې کلمې پيدا کولای شي او هغه پر تختې ليکلای شي؟<br>ـــ څوک به د ( ټوکې، زرکې، خوله، ورکه، ګيدړه ) کلمې معنا او پر تخته وليکلای شي؟<br>ـــ څوک ويلای شي چې له دې ټوکې څخه مو څه نتيجه واخېسته؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې له خپل فکر څخه يوه ښکلې او مناسبه ټوکه په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط سره وليکي. |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | ټوکه یا ټوقه هغه وینا یا عمل چې د بل چا د خندا او ساعت تېرۍ وړ وګرځي. د ټوکو موخه دا ده چې د لوستونکي، اورېدونکي ذهني ستړیا لیرې کړي.هغه کسان چې د علم او پوهې په څېړنه او تحقیق کې بوخت دي خامخا د هغوی ذهن او فکر ستړی کېږي چې په دې وخت کې ضرور دا ده چې څه نا څه ذهني تفریح وکړي او خپله ستوماني رفع کړي. څرنګه چې د انسان بدن ډول ډول خوړو او اوبو ته اړتیا لري،همدا راز د انسان فکر او دماغ هم تفریح ته اړتیا لري، که چېرې موږ زیاته مطالعه یا لیکنه وکړو، نو یقینا چې فکر مو ستړی کېږي چې په داسې وخت کې بیا د موضوع موخه په سمه توګه درک کولی نشو او په پای کې موضوع له موږ څخه نیمګړې یا نا څوابه پاتې کېږي، نو که غواړو چې له یوې خوا زموږ ذهني ستړیا لیرې شي او له بلې خوا هم زموږ علمی کارونه په سمه توګه ترسره شي، نو پکارده چې د خپل ذهني ستړیا د لیرې کولو په خاطر ټوکې، ټکالې ولولو او یا له بل چا څخه یې واورو. څکه چې د ټوکو اورېدل د روح غذا ده، نو ښاغلی ښوونکی دې کوښښ وکړي چې د تدریس په پای کې وخت غنیمت وګڼي او د خپلو زده کوونکو د ذهني ستړیا د لیرې کولو په خاطردې په زړه پورې ټوکې ووایي او یا دې له کوم زده کوونکي څخه چې ټوکې یې زده وي ورته موقع ورکړي چې خپلو ټولګیوالو ته یوه خوندوره ټوکه ووایي، ترڅو د زده کوونکو دماغې ستړیا لیرې شي او په دې کار سره دزده کوونکو د خبرو کولو مهارت هم پیاوړی کېږي. |

## شپاړسم لوست

### د تدریس لارښود پلان

### د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **عادل پاچا** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ــ د عدل او عدالت په مفهوم به وپوهېږي او متن به سم ولوستلای شي.<br>ــ د نویو لغتونو معنا به ووایي او په کلمو کې به یې وکاروي.<br>ــ د متن مفهوم به په خپله ژبه ووایي.<br>ــ د لوست په پوهیدو سره به د عدل او عدالت په ارزښت وپوهیږي او د یوه ځوان په توګه به دا مسولیت احساس کړي چې پرې نورو ته لارښوونې وکړي. |
| انګیزوي پوښتنې | – څه فکر کوئ چې عدل یا عدالت څه ډول عمل دی؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې او د حاضرۍ اخیستلو وروسته د زده کوونکو کورنۍ دنده اصلاح کوي، د نوي لوست عنوان( عادل پاچا) د تختې پر مخ لیکي، او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې متن په چوپتیا له ځان سره ولولي او مشکلې کلمې دې په نښه کړي.
ــ ښوونکی د متن جملې سمې او روانې په لوړ او مناسب آواز سره لولي، د متن په معنا او مطلب خبرې کوي، نوي لغتونه معنا کوي او همدارنګه د لوستلو په بهیر کې له زده کوونکو څخه ځارنه هم کوي.
ــ ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپلو ډلو کې یو بل ته املا ووایي.
ــ له زده کوونکو دې وغواړي چې متن په خپلو ډلو کې څو څو وارې ولولي او بیا دې له هرې ډلې څخه یو یو تن زده کوونکی د تختې مخې ته راشي او نورو ټولګیوالو ته دې د درس مفهوم بیان کړي.
ــ ښوونکی د هرې ډلې له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي، یو تن د کتاب له مخې جملې لولي او بل یې د تختې پر مخ لیکي، که چېرته کوم زده کوونکی کمزوری وي څو څو ځلې دې پرې د املا کار وکړي.
ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د کیسې په مطلب خبرې وکړي.
ــ زده کوونکي دې د متن جمع کلمې پر تختې ولیکي او بیا دې ورته جملې جوړې کړي.

| ستونزمنې برخې | |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک به د متن جملې سمې او روانې ولوستلی شي؟ ــ څوک د متن مفهوم او مطلب په خپله ژبه ویلی شي؟ ــ څوک به نوي لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي؟ ــ د متن له لوستلو څخه مو څه نتیجه واخیستله؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په دې اړه چې موږ له دې کیسې څخه څه پیغام واخیست څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

## اوه لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **متلونه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ـ زده کوونکي به وپوهيږي چې متل څه ته وايي.<br>ـ د متلونو متن به سم او روان ولوستلای شي او د هر متل په معنا او مطلب به پوه شي.<br>ـ د نويو لغتونو معنا به ووايي او په جملو کې به يې وکارولای شي.<br>ـ په خبرو او ليناوو کې به د متلونو په ارزښت وپوهيږي او د هر متل د کارولو ځای به وپيژني. |
| انگيزوي پوښتنې | – تاسو له متلونو سره آشنا يي لرئ او کوم متل ويلای شئ؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ـ ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولگي تنظيم، د حاضري اخيستلو وروسته د زده کوونکو د کورنۍ دندې کتنه کوي او هغه اصلاح کوي.

ـ ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحيم په ويلو چارټ له مخې متلونه په سم تلفظ او په مناسب آواز لولي، دهر متل په مطلب خبرې کوي. بيا متلونه په څو زده کوونکو په وارسره د ټولگي په وړاندې لولي او په لوستلو کې له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې په لوستلو کې کمزوري دي.

ـ ښوونکی په څو زده کوونکو باندې د تختې پرمخ د متلونو لوست د املا کار کوي او تېروتنې يې ورته اصلاح کوي.

ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې يو بل ته املا ووايي او که چېرته زده کوونکي په ليکلو کې کومه تېروتنه کوي سم دلاسه يې ورته اصلاح کوي.

ـ له څو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې په وار سره يو متل ووايي او په مطلب دې لنډې خبرې وکړي.

ـ ښوونکی دې د هر لوست فعاليت په زده کوونکو عملي کړي او د نيمگرتيا په صورت کې دې پوره مرسته وکړي.

| ستونزمنې برخې | متل ـ ضرب المثل مل ـ همراه يا دوست لستونی ـ آستين |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک به د لومړي متل مطلب بيان کړي؟<br>ـ څوک متلونه روان لوستلی شي؟<br>ـ څوک لاندې نيمگړې متل په مناسبو کلمو بشپړولی شي؟ وخت لکه.... دی. |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې داسې متلونه په ښکلي خط سره وليکي چې په کتاب کې نه وي راغلي. |

| | |
|---|---|
| اضافی معلومات | د پښتو ژبې د متلونو په اړه ختیځ پوهانو هم څه نا څه په خپلو لیکنو کې څرګندونې کړې. (اس سی تی) (برن) انګریزي ختیځ پوه داسې لیکي چې: (متلونه هغه عام حقایق دي چې د خلکو په خبرو اترو کې په ذوق او خوند سره ویل کېږي). یو بل پوه چې (سپریانو) نومېږي د متلونو په اړه داسې نظر ورکوي: (متلونه هغه لنډې ویناوې دي چې بلاغت او ریښتنوالی ولري، دغه ویناوې له ډېرې پخوا زمانې څخه په وګړو کې موجودې او د دوی خوښې وې) یو بل څېړونکی چې چارلس نومېږي داسې وایي (متلونه هغه وړې مګر چستې جملې دي چې د انساني ژوند تجربې او مشاهدې پکې په ډېر عجیبه انداز، په نا آشنا طریقه او خوندناک شکل وړاندې شوې وي.) نامتو لیکوال او څېړونکي پوهاند عبدالحی حبیبي د متلونو په باب داسې وایي: ( د پښتو متلونه ډېر لوی مقصد په لنډو ویناوو کې ښکاره کوي او د ویسا وړ ګڼل کېږي او په وینا کې د قالب او شاهد مثال لري) زموږ خلک متلونه په خپلو خبرو کې کاروي، خو هر متل ځانته د کارونې ځای لري او د یوې ځانګړې موخې لپاره یې استعمالوي، د مثال په ډول: کوږ بار تر منزله نه رسېږي. افغانان دا متل په هغه ځای کې کاروي چې څوک وغواړي په دروغو، دوکو او چالاکۍ سره ځان یوې رتبې ته ورسوي څکه د نړۍ تجربو او پېښنو د دې خبرې څرګندونه کوي او ښيي، څرنګه چې د یوه دېوال بنسټ پوخ وي، نو هغه دېوال به تل ولاړ وي او که چېرې یې بنسټ او تهداب سم نه وي، نو ښایي چې ولوېږي. همدارنګه که څوک یو کار په خپله غاړه ومني یا یې په اوږه واخلي او د هغه کار د اخیستلو زور او توان په هغه کې موجود نه وي، نو پرځای خبره ده چې کار ترې خرابېږي. د متلونو اساسي مفهوم دا دی چې هر متل په خپل وخت کې د خلکو له خوا په داسې حالاتو کې ویل شوي چې هر متل د خپل سیمه ییز چاپېریال او ټولنیز څرنګوالي ژباړنې کوي. یعنې هر هغه عمل او کار چې د ډېرو تجربو نه تېر شوی وي او حقیقت ګرځېدلی وي. متل د استدلال په پیله کې د ټولو خبرو د تصدیق په توګه راوړل کېږي. |
| ماخذونه | ګړنی ادب: لیکوال حبیب الله تړی |

## اتلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د غاښونو ساتنه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د غاښونو د روغتیا په ارزښت او پاک ساتلو په ګټو به وپوهیږي.<br>ـ د متن په اصلي موخه او مفهوم به وپوهیږي او متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ په متن کې به نوي لغتونه په ګوته او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ـ د متن په مفهوم به په خپله ژبه خبرې وکړای شي.<br>ـ په دې به وپوهیږي چې د غاښونو پاک ساتل د دوی په روغتیا او سلامتۍ کې اغیزمن رول لري. |
| انګیزوي پوښتنې | − ستاسو په فکر د خپلو غاښونو د ساتنې لپاره باید څه وکړو؟<br>− په غاښونو د کلکو شیانو ماتول څه زیان لري؟<br>− څه باید وکړو چې غاښونه مو زیانمن نشي؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه<br>ـ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د درس په اړوند انځوریز چارټ پر تخته ځړوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې په انځور خبرې وکړي، بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته په دقیقه توګه وګوري، ښوونکی نوی لوست د بسم الله الرحمن الر حیم په ویلو په لوړ او مناسب اواز سره لولي، د لوستلو په حال کې زده کوونکي هم څاري او وروسته د درس په مفهوم او ارزښت خبرې کوي، ترڅو زده کوونکي دې ته اړ شي چې خپل غاښونه هره ورځ پاک وساتي.<br>ـ ښوونکی له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې د نوي لوست هغه لغتونه چې زده کوونکي یې په معنا نه وي پوه شوي په وارسره پرتخته ولیکي او خپله ښوونکی یې ورته معنا کوي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکي په ډلو وېشي او لارښوونه کوي چې هره ډله دې په خپلو منځو کې د غاښونو د پاک ساتلو په اهمیت څو لنډې جملې په یوې پاڼه کې ولیکي او بیا د هرې ډلې یو تن زده کوونکی دې د خپل ګروپ په استازیتوب لیکل شوې پاڼه نورو ته ولولي او ښوونکی د هرې ډلې د کار نیمګړتیا دې ورته اصلاح کړي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې درس په چوپه خوله ولولي او بیا د هرې ډلې یو تن زده کوونکی د غاښونو د ارزښت په اړه نورو ته خپل معلومات وړاندې کوي.<br>ـ ښوونکی په عملي ډول د غاښونو د برس او مسواک وهلو طریقه دې په ټولګي کې زده کوونکو ته ترسره کړي او بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي چې د غاښونو د مینځلو په اړه خبرې وکړي. | |
| ستونزمنې برخې | |
| د لوست ارزونه | ـ څوک به د درس په مفهوم خبرې وکړي؟<br>ـ څوک به نوی لوست د کتاب له مخې ولولي؟<br>ـ څوک به لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي؟ غاښونه، زیان،کلک |

| | |
|---|---|
| | ـــ څوک کولی شي چې د درس لنډیز په خپله ژبه ووایي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| اضافي معلومات | غاښونه د لوی خدای جل‌جلاله ستر نعمت دی. زده کوونکي دې په دې وپوهېږي چې مسواک وهل سنت موکد کار دی او سنت موکد هغو سنتو ته ویل کېږي چې حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ورباندې همېشه والی کړی وي، په خپل ژوند کې یو یا دوه ځله یې پر یښې وي.د اسلام مبارک دین د خولې او غاښونو د نظافت او پاکوالي لپاره د مسواک وهل د هرپنځه وخته لمانځه لپاره د اودس کولو په وخت کې روا او ورباندې امر کړی چې زموږ د خولې بدبویي، د غاښونو ژېړوالی له منځه لاړ شي او دغه لوی نعمت مو خراب نشي. د الله جل‌جلاله دغه ستر نعمت چې غاښونه دي خوندي او پاک وساتو.د هند د طبابت ماهرانو په (۲۰۰۰) کال کې په ثبوت ورسوله چې ولې د اسلام مبارک دین خپلو پیروانو ته د اودس کولو په وخت کې د مسواک وهلو امر کړی دی؟ دوی ثابته کړه چې کله څوک مسواک وهي، نو د مسواک د ریښو له لارې د خولې او غاښونو بدبویي له منځه ځي. نو ثابته شوه چې له برس وهلو نه هم مسواک وهل ګټور دي، په هر صورت باید کوښښ وکړو چې خپل غاښونه له خوړو وروسته په مسواک یا برس پاک پرېمینځو چې خراب نشي، همدارنګه ښوونکی دې زده کوونکو ته د مسواک او یا برس وهلو سمه طریقه وروښیي، کوښښ دې وکړي چې نورې زیاتې څرګندونې هم ورته وکړي. مسواک وهل یا د غاښونو برس او کریم د لاندې درې ډوله موادو د لیرې کولو او له منځه وړلو لپاره کارول کېږي: د ورځنیو خوراکي موادو د پاتې شویو لرې کول (چې د غاښونو په منځ یا نورو برخو کې نښتي او یا پاتې وي). د خولې د لعابو پروټینونه او د هغو موادو پروټینونه چې د شپې او ورځې په اوږدو کې په خوله کې د غذایي موادو د تجزیې (د بکتریاو او انزایمونو په وسیله) څخه تولیدیږي، لرې کول. د هغو میکروبونو له منځه وړل چې په طبیعي ډول په خوله کې موجود دي. |
| ماخذونه | |

## نولسم لوست

### د تدریس لارښود پلان

### د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **مرکبې کلمې** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ــ د مرکبې کلمې په معنا به وپوهیږي.<br>ــ د مرکبې کلمې تعریف به له یاده ووایي او متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ــ د مرکبو کلمو په مطلب به پوه او خبرې به پرې وکړای شي.<br>– په جملو کې به مرکبې کلمې تشخیص کړای شي.<br>– د نوي لوست په لوستلو به ډادمن شي چې هره کلمه به په مناسب ځای کې وکارولای شي. |
| انګیزوي پوښتنې | – ستاسو په فکر مرکبې کلمې څه ډول کلمې دي، څوک یې کوم مثال ویلای شي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د لوست عنوان (مرکبې کلمې) د تختې پرمخ لیکي، او لوست په لوړ اواز سره لولي.

ــ ښوونکی د مرکبې کلمې تعریف کوي او بیا لوست په څو زده کوونکو په وار سره لولي او په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي.

ــ ښوونکی د مرکبو کلمو مثالونه پرتخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي.

ــ ښوونکی د مرکبو او ساده کلمو لیکلي کارتونه په مېز ږدي، له هرې ډلې څخه دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي یو زده کوونکی یو کارت پورته کوي کلمه لولي، بل زده کوونکی یې پر تخته لیکي، ښوونکی بیا پوښتنه کوي چې لیکل شوې کلمه څه ډول کلمه ده؟ زده کوونکي ځواب ورکوي.

ــ زده کوونکي د یو بل په مرسته د مرکبو کلمو په معنا او تعریف خبرې کوي او د هغو لنډ تعریف زده کوي.

ــ زده کوونکي د ښوونکي د لارښوونې سره سم په کلمو کې مرکبې کلمې په نښه او بیا یې په خپلو کتابچو کې لیکي.

ــ له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره کومه ټوکه یې زده وي نورو ته دې ووایي.

ــ ښوونکی دې پر زده کوونکو د مرکبو کلمو تمرین تر سره کړې.

| ستونزمنې برخې | خپلواک ــ مستقل ورځپاڼه ــ روزنامه، اخبار |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک د مرکبې کلمې تعریف کولی شي؟<br>ــ څوک به پر تخته څو مرکبې کلمې ولیکلی شي؟<br>ــ له تاسو څخه به څوک متن سم او روان ولوستلی شي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مرکبې کلمې تعریف او مثالونه ولیکي. |
| اضافي معلومات | مرکب نوم یا مرکبه کلمه هغه ده چې له دوو یا ډېرو ریښو څه جوړه شوې وي لکه: کتابتون، پرهار پاڼه، نوی ښار،ګلخانه، بادام ګل، سپین غر، تور غر، زر ځانګه او نور. یا په بل عبارت: مرکبه کلمه له دوو خپلواکو کلمو څخه جوړه شوې وي او یا له دوو معنا لرونکو کلمو څخه مرکبه شوې وي. |

## شلم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **له هیواد سره مینه** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ــ له هیواد سره د مینې په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>ــ متن به په روانه توګه ولوستلای شي.<br>ــ د متن په مفهوم به خبرې وکړای شي.<br>ــ په زده کوونکو کې به له هیواد سره د مینې او د هغه د خدمت کولو روحیه پیاوړې شي.<br>– د لوست په پوهیدو سره به پدې باوري شي چې د وطن ساتنه یې ایماني دنده ده. |
| انګیزوي پوښتنې | – د لوست په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟<br>– آیا د خپل هېواد په هکله څه ویلای شئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د نوي لوست عنوان ( له هېواد سره مینه) پر تخته لیکي، او له زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست په انځور خبرې وکړي.

ــ ښوونکی نوی لوست په لوړ او مناسب آواز لولي او په مطلب یې لنډې څرګندونې کوي.

ــ ښوونکی په څو تنو زده کوونکو لوست په وار سره لولي او په لوستلو کې مرسته کوي.

ــ ښوونکی بیا په زده کوونکو باندې د متن له مخې د املا کار کوي او د تېروتنو په وخت کې نورو زده کوونکو ته موقع ورکوي چې د خپلو ټولګیوالو غلطۍ اصلاح کړي. خو د املا کار به د تختې پرمخ ترسره کېږي.

ــ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوغواړي ترڅو هر یو خپل ځانونه نورو ټولګیوالو ته معرفي کړي.

| ستونزمنې برخې | ګډ کور ــ مشترک کور وده ــ نمو وېجاړ ــ ویران رښتیني ــ واقعي نن ــ امروز راتلونکی ــ آینده |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک د هېواد د مینې په اړه معلومات ورکولی شي؟<br>ــ څوک د (هېواد ــ ګټه ــ وده) د کلمو هم معنا ویلی او پر تخته یې لیکلی شي؟<br>ــ ګرانو زده کوونکو ! له دې لوست څخه مو څه نتیجه واخېستله ؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په دې اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي. (موږ د خپل هیواد په اړه څه مسولیتونه لرو.) |
| اضافي معلومات | افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی. په دې هېواد کې ګڼ شمېر ملیتونه او قومونه لکه: پښتون، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، پشه یان، نورستاني او نور سره ژوند کوي. دغه قومونه او ملیتونه تل د تاریخ په اوږدو کې په ملي یووالي او ورورولۍ کې له یو بل سره ښې او نېکې اړیکې درلودې، لریي یې او و به یې لري. د افغانستان ټول قومونه او ملیتونه افغانان دي او له خپل هېواد سره د زړه له کومې مینه لري، دوی تل د خپل هېواد په سوکالۍ، ودانۍ او خپلواکۍ کې برخه لرله او لري یې. دغه هېواد د یو غني فرهنګ لرونکی دی. افغانان نارینه او ښځې د |

| خپل فرهنگ په عنعناتو باندې وياړي، د خپل هېواد اسلامي، ملي کلتور او فرهنگ ته يې د زړه له کومې خدمتونه کړي دي، د خپل هېواد ملي هويت يې نړۍ والو ته څرگند کړی دی، زموږ خلک د خپل هېواد سوچه هنر او لاسي صنايعو ته اهميت ورکوي، همدارنگه په ټولنه کې اسلامي او مدني ټولو غوره منل شويو اصولو ته درناوی لري، د ټولنې عالمانو او پوهانو ته په درنه سترگه گوري، دغه نجيب او شريف ولس تل د خپل ټاټوبي او ملي شتمنيو او وياړونو کلک ساتونکي وو او دي، د هېواد له آبادۍ او ښېرازۍ سره مينه لري. | |
|---|---|

## یوویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **جمله** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>_نوی لوست به په روانه توګه ولوستلای او د جملې په معنا او مفهوم وپوهېږي.<br>– په ژبه کې به د جملو په اهمیت وپوهیږي.<br>_ د جملې تعریف به په پښتو ژبه له یاده وویلای شي.<br>– په لیکلو کې د جملو سمو لیکنو ته پاملرنه وکړي.<br>– د صفتونو په هکله به نورو معلوماتو د حاصلولو لپاره خپلې مطالعې ته دوام ورکړي. |
| انګیزوي پوښتنې | – ستاسو په فکر جمله څه ته وايي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د نوي لوست عنوان ( جمله) پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې متن ته په دقت وګوري او غوږ ونیسي، ښوونکی لوست په لوړ او مناسب اواز لولي او بیا د لوست په معنا او مفهوم خبرې کوي.

ــ ښوونکی د لوست متن په څو تنو زده کوونکو په وار سره لولي او په لوستلو کې له دوی سره مرسته کوي.

ــ ښوونکی د لوستلو وروسته څو لنډې جملې د زده کوونکو په واسطه د تختې پرمخ د مشق او تمرین په توګه کار کوي او همدارنګه هغه جملې چې بشپړه معنا او مفهوم نلري له زده کوونکو څخه غواړي چې مثالونه یې پر تخته ولیکي. د نیمګړتیا په صورت کې ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته کوي.

ــ ښوونکی بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د جملې په لوست پورې اړونده ټوکه په خپلو ډلو کې په چوپتیا ولولي او په مطلب یې ځانونه پوه کړي.

ــ ښوونکی ټوکه په زده کوونکو لولي او د لوستلو په تېروتنو کې پوره مرسته کوي.

ــ ښوونکی ټوکه په سم تلفظ د کتاب له مخې لولي او وروسته د لوست نوي لغتونه د تختې پر مخ لیکي او له هرې ډلې څخه څو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي چې یو لغت معنا او پر تخته یې ولیکي.

ــ ښوونکی بیا غواړي چې همدغه لوستل شوې ټوکه په خپله ژبه نورو ته ووایي.

| ستونزمنې برخې | بشپړه ــ پوره، مکمل ټوکه ــ فکاهی مېړی ــ مورچه<br>وېرېدل ــ ډارېدل، ترسیدن ګټل ــ شمردن |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک ویلای شي چې جمله څه ته وايي؟<br>ــ څوک د تختې پر مخ یوه جمله لیکلی شي؟<br>ــ څوک په پښتو ژبه د جملې تعریف ویلی شي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې له تېرو درسونو څخه په خپلو خوښه څو جملې وټاکي، مبتدا او خبر دې پکې وښیي او په کتابچو کې دې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | هغه پوهه چې د جملې له جوړښت او ساختمان څخه بحث کوي د نحوې یا سنټکس په نامه یادېږي. جمله : د هغو کلمو مجموعه ده چې یو بشپړ مفهوم لاس ته ترې راشي جمله ګڼل کېږي. لکه: هغه ځنګل ته ولاړ.ساده لنډې جملې هغو جملو ته وایي چې یوازې د جملې اساسي برخې (مبتدا او خبر) ولري، لکه په دې جملو کې: احمد ولاړ.باران ورېږي. ګل وغوړېد. موټر ودرېد. توریالی راغی.<br>مرکبه جمله: هغې جملې ته وایي چې له دوو یا زیاتو ساده وو جملو څخه جوړه شوې وي، لکه په لاندې جملو کې : اجمل ښوونځي ته ولاړ. زرغونه د ملالۍ په لېسه کې ښوونکې ده.مرکبې جملې په دوه ډوله دي، ۱ــ پیوسته مرکبه جمله ۲ــ تابع مرکبه جمله پیوسته جمله هغه ده چې له دوو یا له دوو څخه زیاتو ساده وو مستقلو جملو څخه جوړه شوې وي. |

## دوه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **تېلفون** |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د تېلېفون په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ د تېلفون په هکله به نوروته معلومات ورکړای شي.<br>ـ په متن کې به نوي لغتونه معنا او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ـ د تیلفون د لوست په اهمیت، اړتیا او ارزښت به وپوهیږي او په ورځني ژوند کې به ترې سمه ګټه واخیستلای شي. |
| انګیزوي پوښتنې | – تاسې د تېلفون د ګټو او ارزښت په اړه څه ویلای شئ؟<br>– څوک ویلی شي چې د تېلفون جوړښت او اختراع د چا له خوا ترسره شوه؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>ـ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته نوی لوست د بسم الله الر حمن الرحیم په ویلو او په مناسب اواز لولي او ټولګی هم تر څارنې لاندې نیسي.<br>ـ ښوونکی د لوست نوي لغتونه له معناوو سره پر تخته لیکي او د زده کوونکو لخوا په ښه شوې ستونزې حل کوي. او زده کوونکي لغتونه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>ـ ښوونکی د تېلفون د ګټو، اړتیا او ارزښت په اړه لنډې خبرې کوي.<br>ـ ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې په خپلو ډلو کې لوست ولولي او بیا د هرې ډلې یو یو تن د ټولګي مخې ته راغواړي چې د تېلفون د ګټو او ارزښت په اړه یوه یوه جمله ووایي.<br>ـ ښوونکی د نوو کلمو لیکلي کارتونه د تختې پرمخ ځړوي، بیا د هرې ډلې له زده کوونکو څخه غواړي چې دوه دوه تنه د تختې مخې ته راشي، یو تن کلمې لولي او بل زده کوونکی یې د تختې پر مخ لیکي، خپله ښوونکی د تېروتنو په وخت کې مرسته کوي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د متن جملې یو بل ته املا ووایي، خپله ښوونکی له زده کوونکو څخه څارنه کوي او د اړتیا په وخت کې پوره مرسته کوي. | |
| ستونزمنې برخې | جوړښت ـ ساختار اختراع ـ ایجاد کردن هڅو ـ کوششها واټن ـ فاصله پرمختګ ـ ترقی |
| د لوست ارزونه | ـ څوک ویلی شي چې تېلفون د لومړي ځل لپاره چا اختراع کړ؟<br>ـ څوک ویلی شي چې تېلفون د څه شي لپاره کارول کېږي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د تېلفون متن په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| | تر میلاد ۶۰۰ کاله وړاندې اریایان پر دې کار بریالي شول چې په دوو ورځو کې د ۴۰۰ کیلو |

| | |
|---|---|
| اضافي معلومات | مترو په واټن خپل خبر ورسوي.دوی به په يوه ټاکلي واټن کې يو يو کس په جگ او لوړ ځای کې ودراوه او بل ځای کې به هغه خبر په لوړ غږ اوراوه او هغه به بيا بل ته رساوه چې په دې ډول به واټن لنډېده، تر ټولو د مخه لومړی د يوه کارپوه چې ( هوک) نومېږي، د دغه پوه په وسيله ځينې نښې او علامې جوړې شوې چې د الفبې ځای يې ونيو، دا نښې په يو په بل پسې جگېدلې او مخابره به تر سره کېدله. ددې کار پوه له کار او زيار څخه وروسته يو بل عالم چې ( کلورشاپ) نومېږي او د فرانسې اوسېدونکی و، پر ۱۷۹۰م کال يو نسبتا بشپړه وسيله اختراع او جوړه کړه چې له پاريس څخه د فرانسې ځينې نور ښارونه له يو بل سره ونښلوي. همدارنگه د تېلگراف يو بل مخترع د موريس په نامه چې د امريکا د متحده ايالاتو و، ده په ۱۸۳۱ م کال تېلگراف په کار واچوه. موريس تورو ته له ټکو او خطونو څخه اشارې جوړې کړې چې په برقي څپو اوښتې، تېلگراف لېږونکې او اخيستونکې دستگاه يې درلوده او بېرته يې په تورو اړول او پر کاغذ يې ليکل. زموږ هېواد ته تېلگراف په ۱۹۱۴م کال کې راغی او په بابر باغ کې نصب او ونښلول شو، دا دستگاه په مارکتې کمپنۍ کې جوړه شوې وه او په دوه کيلو واټه قوه يې کار کاوه. دا دستگاه د څارويو په وسيله له يوه ځای څخه بل ځای ته لېږدول کېده او په اصل د عسکري مخابرې لپاره وه چې د اړتيا په وخت کې ورڅخه کار اخيستل کېده، خو سيم لرونکی تېلگراف تر بېسيم وروسته اختراع شو او زموږ هېواد ته هم وروسته ورسېده. همدارنگه تېلفون چې په اوسنۍ نړۍ کې د بشر يوه مهمه او ضروري وسيله ده، د لومړي ځل لپاره د انگلسيي پوه (هوک) له خوا اختراع شوه. همدا ډول په ۱۷۸۲م کال يو تن کشيش يوه غږيزه لوله جوړه کړه چې تر۸۰۰ مترو پورې يې د ويناد غږ لېږداوه. په ۱۸۸۳م کال ( چارلز ميچ) امريکايي کار پوه د خالصې اوسپنې ميلې مقناطيسي کړې او يوه يې له بلې تر څنگ کېښوده چې دې کار غږ او اواز توليد کړ او وروسته دغه دستگاه نوره هم اصلاح شوه. تر هغه چې يو بل کار پوه او عالم( گرام بل) نومېږي او د امريکا اوسېدونکی و په خپلو زياتو هڅو او څېړنو په ۱۸۸۵ م کال يې وکړای شول چې تېلفون اختراع او جوړ کړي. بيا هم د نوموړي کار پوه دا کار بشپړ نه و، وروسته يو بل عالم چې (اديسن) نومېږي له نورو عالمانو سره يو ځای نوموړی تېلفون بشپړ کړ او تر ليرې واټن پورې يې غږ ولېږداوه. زموږ په هېواد کې د تېلفون غځول په ۱۸۹۹ م کال پيل شو. د تېلفون لومړی لين چې په يوه لينه مسي سيم يې کار کاوه، د سردار حبيب الله خان او سردار نصرالله خان د استوگنځيو تر منځ چې يو کيلو متر واټن يې درلود وغځول شو. دريم لين د ارگ له دروازې څخه د با بر باغ پورې تمديد شو او په دې ډول د تېلېفون کار ورو ورو په ټول هېواد کې وغځېد. په اوسنۍ نړۍ کې د تېلېفون بڼه او کيفيت ډېر پرمختگونه کړي، لکه: ډول ډول موبايل چې په اسانۍ سره خلک کولی شي ترې گټه واخلي او دا تېلفون په خپلو جېبونو کې له يوه ځای څخه بل ځای ته وړلای شي. |

## درویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **نظم** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>– متن به سم ولوستلای او د نظم په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>ـــ د متن مطلب به درک او بیان کړي.<br>ـــ د متن په اصلي مفهوم او مطلب به خبرې وکړای شي.<br>ـــ د نظم تعریف به په پښتو ژبه وویلای شي. |
| انگیزوي پوښتنې | – تاسو کله د نظم کلمه اورېدلې او په معنا یې پوهېږئ؟<br>– آیا تاسې نثر پېژنئ او له نظم سره څه توپیر لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه**<br>ـــ ښوونکی د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو سره زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د څو شېبو لپاره د نظم ټاکل شوې برخه د یو بل په مرسته په چوپتیا ولولي. ښوونکی له زده کوونکو څخه څارنه کوي.<br>ـــ ښوونکی بیا د نظم ټاکلې برخه په سم تلفظ او مناسب اواز لولي او د لوستلو په جریان کې زده کوونکي تر څارنې لاندې نیسي.<br>ـــ ښوونکی بیا د متن ټاکلې برخه پر زده کوونکو باندې د تختې پر مخ د املاً کار تر سره کوي. نور زده کوونکي د خپل ټولگیوال غلطۍ نیسي او ښوونکی یې تاییدوي.<br>ـــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دوه دوه تنه زده کوونکي په خپل منځ کې په ټیټ اواز نوی لوست ولولي، بیا هم په کوم ځای کې چې ستونزه ولري هغه ځای په نښه کوي او له ښوونکي څخه یې پوښتنه کوي.<br>ـــ ښوونکی څو تنه زده کوونکي په خپله خوښه په نوبت د ټولگي مخې ته راغواړي، ورته وایي چې د نني لوست په مطلب او مفهوم لنډې خبرې وکړي.<br>ـــ ښوونکی د کلمو لیکلي کارتونه د مېز په سر ږدي، بیا د هر گروپ له دوو دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي، یو زده کوونکی دوه کارتونه د مېز له سر څخه پورته کوي،کلمې له معنا وو سره لولي، بل زده کوونکی یې پر تخته د املا په ډول لیکي او نور زده کوونکي یې غلطۍ وراصلاح کوي. | |
| ستونزمنې برخې | مرغلرې ـــ مروارید ارزښتناک ـــ قېمتي پیپل ـــ جیل کردن قافیه ـــ کلمه های هم وزن که در آخر نظم ها آورده شود |
| د لوست ارزونه | ـــ څوک به د نني لوست مطلب بیان کړي؟ـــ څوک به متن سم ولولي؟ ـــ څوک کولای شي چې د ( ارزښتناک ـــ مرغلرې ـــ پېیل ـــ قافیه ) کلمې پر تخته ولیکي او بیا یې معنا کړي؟<br>ـــ څوک به د نظم تعریف له یاده ووایي؟<br>ـــ په دې لوست کې نظم ولې له ارزښتناکو دانو سره تشبیه شوی؟ |

| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط سره وليکي. |
|---|---|
| اضافي معلومات | په پښتو ادبیاتو کې دوه ډوله نظمونه شته دي: ۱ــ ملي نظمونه، لکه: چاربیتې، بګتۍ،نارې اونور.. ۲ ــ مشترک نظمونه، لکه غزل، قصیده، مخمس، مسدس، ترکیب بند، تر جیح بند، مثمن، معشر، مثنوي او داسې نور.<br>نظم هغې لیکنې او وینا ته وایي چې وزن او قافیه ولري. یا په بل عبارت هغو لیکنو ته ویل کېږي چې هم وزنه کلمې پکې مراعات شي. دا هم وزنه کلمې چې قافیه ورته وایي عموماً د شعرونو او نظمونو په پای کې راځي. زیاتره نظمونه ردیف هم لري. ردیف د قافیې د کلمو او نظمونو په پای کې راځي. په معاصرو اشعارو کې زیاتره شاعران داسې اشعار هم وایي چې قافیه نه لري. داسې شعرونو ته آزاد شعرونه هم ویل کېږي. څنګه چې پوهېږو نظم په لغت کې د مرغلرو د دانو پیېلو ته وایي چې نوموړو مرغلرو ته ملغلرې هم وایي. له دغو قېمتي مرغلرو له پیېلو څخه ښکلي، ښایسته او قېمتي امېلونه جوړېږي او زیاته بیه لري، همدا شان کله چې شاعرغواړي یوه موضوع او یا یوه پوښتنه چې هدف یې ده او د شعر په ژبه یې بیان کړي، نو بیا د الفاظو، مناسبو کلمو، تشبیهاتو او استعارو له کارولو څخه کار اخلي. له هغه څخه یو ښکلی نظم جوړوي. د نظم په ویلو کې باید ډېر غور وشي، له کلمو او الفاظو څخه داسې کار واخیستل شي چې د نظم له چوکاټ سره برابري ولري. دا نظم ښایي قصیده وي، مثنوي وي، ترکیب بند، ترجېح بند او داسې نور... وي. ترڅو نظم خپل هنري ارزښت، ښکلا، خوند او مفهوم له لاسه ورنکړي. |

## څلورویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **لیک نښې** |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ د لیک نښو په معنا او کارولو به وپوهیږي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د درس په اصلي مفهوم او مطلب به خبرې وکړای شئ.<br>– په لیکلو کې د لیک نښو سمو او په ځای کارولو ته به پاملرنه وکړي. |
| انګیزوي پوښتنې | – تاسو نثر پیژنئ او له نظم سره توپیر لري؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د نوي لوست عنوان ( نثر) پر تخته لیکي.

ــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست ټاکلې برخه د خپل کتاب له مخې په چوپتیا له ځان سره ولولي.

ــ ښوونکی بیا د هرې ډلې په څو زده کوونکو متن په سم تلفظ لولي او په لوستلو کې پوره مرسته کوي.

ــ ښوونکی متن سم او روان لولي او بیا د لیک نښو په اړه لنډ معلومات ورکوي.

ــ ښوونکی د لوست نوي لغتونه پر تخته لیکي او له زده کوونکو څخه يې د معنا پوښتنه کوي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکي په مناسبو ډلو وېشي، هرې ډلې ته وخت ورکوي او ورته وایي چې په خپلو ډلو کې د نظم او نثر په اړه خبرې وکړي او بیا دې په لیکلې بڼه په مثالونو کې روښانه کړي. ښوونکی په ډلو ګرځي راګرځي، په ستونزو کې دې پوره مرسته وکړي، په تشویقي الفاظو دې وهڅوي او د هرې ډلې استازی دې د خپل د نظم او نثر لیکلی توپیرونه نورو ته واوروي.

ــ ښوونکی څو تنه زده کوونکي په وار سره پاڅوي او ورته وایي چې د نظم او نثر په اړه خبرې وکړي او مثالونه دې هم ووايي.

ــ ښوونکی د لوست له مخې په زده کوونکو باندې د املا کار کوي او ورته دې لارښوونه وکړي چې د املا په لیکلو کې لیک نښې په پام کې ونیسي.

| ستونزمنې برخې | خوروول ــ پاشیدن بندیزونه ــ بندش ها پراختیا ــ انکشاف |
| --- | --- |
| د لوست ارزونه | ــ څوک به د لیک نښو په اړه خبرې وکړي؟<br>ــ څوک ویلی شي چې د نني لوست ارزښت او اهمیت په څه کې ده؟<br>ــ څوک ویلی شي چې د یوې عادي جملې په پای کې کومه لیک نښه کارول کېږي؟<br>ــ څوک یوه سوالیه جمله د لیک نښې سره پر تخته لیکلی شي؟<br>ــ څوک ویلی شي چې ندایي لیک نښه د کومو جملو په پای کې کارډل کېږي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په خپله خوښه یوه مقاله په خپلو کتابچو کې ولیکي او لیک نښې دې په مناسبو ځایونو کې وکاروي. |

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

<table>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td>جرگه</td></tr>
<tr><td>د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي</td><td>زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ـ نوی لوست به له تېرو تنو پرته ولوستلای شي.<br>ـ د جرگې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ د متن مطلب به درک او بیان کړای شي.<br>ـ د متن په مفهوم او مطلب به خبرې وکړای شي او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.</td></tr>
<tr><td>انگیزوي پوښتنې</td><td>– ستاسو په نظر جرگه څه ته وایي؟<br>– څوک به ووایي چې جرگې زموږ د ولس کومې ستونزې حل کوي؟<br>– څوک به وویلی شي چې جرگه زموږ د خلکو پخوانی دود دی او که نه؟ او د جرگو گټې څه دي؟</td></tr>
<tr><td colspan="2">د ښوونکي فعالیتونه<br>ـ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته له تېر لوست څخه یادونه کوي، بیا د نوي لوست عنوان(جرگه) د تختې پرمخ لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې خپلو کتابونو ته وگوري او غوږ ونیسي او په کوم ځای کې چې ستونزه لري په نښه یې کړي. ښوونکی لوست په لوړ او مناسب غږ لولي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې له هرې ډلې څخه یو یو تن زده کوونکی په خپل وار سره متن ولولي، نور زده کوونکي دې متن ته په غور وگوري او د تېروتنو په وخت کې دې پوره مرسته وکړي، هغه زده کوونکي چې په لوستلو کې کمزوري دي هغوی ته دې یو څه وخت ورکړي چې متن ښه ولولي، ترڅو د لوستلو مهارت یې پیاوړی شي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په خپلو ډلو کې متن په چوپتیا ولولي، بیا د لوست په مطلب دې څو زده کوونکي په وار سره خبرې وکړي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د متن لوستل شوې برخه یو بل ته املا ووایي، خپله له زده کوونکو څخه څارنه کوي او د نیمگړ تیا په صورت کې پوره مرسته کوي.<br>ـ ښوونکی بیا د لوست مطلب زده کوونکو ته بیانوي،بیا د مترادفو کلمو چارټ په تخته ځړوي او ټول زده کوونکي د چارټ کلمو ته متوجه کوي او ورته وایي چې په چارټ کې د مترادفو کلمو معنا پیدا او د کلمو تر څنگ یې په خپلو کتابچو کې ولیکي.</td></tr>
<tr><td>ستونزمنې برخې</td><td>پرېکړه ـ فیصله ځانگړې ـ مشخص و خاص پخوانی ـ قدیمی ستونزې ـ مشکلات<br>دود ـ رسم و رواج منلی ـ قبول شده زغم ـ حوصله، صبر</td></tr>
<tr><td>د لوست ارزونه</td><td>ـ څوک به متن سم او روان ولولي؟<br>ـ څوک به د جرگې په اړه لنډ معلومات وړاندې کړي؟<br>ـ څوک به د متن په مطلب په خپله ژبه خبرې وکړي؟</td></tr>
</table>

| | |
|---|---|
| | ــ څوک به نوي لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي؟<br>ــ ددې متن له لوستلو څخه مو څه نتیجه واخېسته؟<br>ــ څوک به د جرګې د ارزښت په اړه خبرې وکړي؟<br>ــ څوک کولی شي چې د چارټ له مخې د مترادفو کلمو معنا پیدا او د کلمو تر څنګ به یې ولیکي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د جرګې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| اضافي معلومات | جرګه د تاریخ په اوږدو کې زموږ د خلکو ملي او منل شوی دود او دستور دی چې زموږ له نیکونو او پلرونو څخه دا ویاړلی دود موږ ته راپاتې دی. زموږ په هېواد کې دوه ډوله جرګې دود دي.<br>۱ــ ملي جرګه ۲ــ د سیمې په سطحه جرګه د جرګې په اړه الله ( ج) په قرآن کریم کې داسې فرمايي: ( هر کله چې تاسې کوم نېک کار کوئ، نو په خپلو منځو کې پرې مشوره وکړئ، ځکه چې ټول مؤمنان سره ورونه دي). همدا رنګه په دې هکله متل دی چې وايي: ((هر کار چې په صلاح وي بې بلا وي)). نو څرګنده شوه چې که د اسلام تاریخ ته وګورو، زموږ پیغمبر(ص) هر کار له صحابه ووسره په مشورې سر ته رسولی، لکه: کله چې د عربو د قبیلو تر منځ د حجر الاسود د تیږې په سر په خپلو منځو کې د هغې په خپل ټاکل شوي ځای د ایښودو په سر لانجه او شخړه وه او هرې قبیلې غوښتل چې تیږه په یوازې سره په خپل ځای کېږدي، نو پیغمبر( ص) د ټولو قبیلو مشران راټول کړل،په خپل څادر کې یې په خپلو مبارکو لاسونو تیږه کېښوده او بیا یې د هرې قبیلې یوه مشر ته د څادر یوه څنډه ورکړه چې په دې توګه هم تیږه په خپل ځای کې کېښوده او هم شخړه له منځه لاړه. نوڅرګنده شوه چې جرګه د اسلام په سپېڅلي دین کې څومره ټولنیز ارزښت لري. د جرګو په وسیله ډېرې لوې مسلې، خپل منځي شخړې او لانجې اوارېږي. کله چې په ټولنه کې یوه ستونزه رامنځ ته شي، نو د هېواد مشران او مخور سره راټولېږي او په ستونزې باندې جرګه جوړوي. وروسته له هغه د جرګې پرېکړه اعلانوي چې په دې توګه ستونزه هوارېږي. په بشري ژوند کې هره ټولنه ځانته جرګې لري چې د جرګو له لارې د خپل هېواد هر ډول ستونزې، غوښتنې او د نورو اړتیاوو په برخه کې لازمې پرېکړې کوي. لنډه داچې جرګه یو ملي او ټولنیز ارزښت لري. |

# شپږ ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **انټرنیټ** |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ــ انټرنیټ به وپیژني.<br>ــ متن به سم ولوستلای او ولیکلای شي.<br>ــ د لوست متن به درک او بیان کړای شي.<br>ــ د نوي لوست په ارزښت به وپوهیږي.<br>ــ د نوي لوست جملې په د املا په ډول ولیکلای شي.<br>ــ د انټرنیټ په اړه به معلومات تر لاسه او د زده کړې په خاطر به مطالعې او عملی کار ته پاملرنه وکړي. |
| انګیزوي پوښتنې | – تاسو د انټرنیټ کلمه اوریدلې او په دې برخه کې معلومات لرئ؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

ــ ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته، له زده کوونکو څخه د لوست په اړوند څو هڅوونکي پوښتنې کوي، بیا د لوست عنوان (انټرنیټ) پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته ځیر شي او بیا لوست په مناسب اواز سره لولي او هم د ټولګي ځارنه کوي، او وروسته د لوست په مطلب خبرې کوي.

ــ ښوونکی زده کوونکي په ګروپونو ویشي او د هر ګروپ په یوه یوه زده کوونکي د لوست متن لولي. خپله ښوونکی د زده کوونکو لوستلو ته غوږ نیسي او د نیمګړتیا په صورت کې ورسره مرسته کوي او هغه زده کوونکي چې د لوستلو په مهارت کې ستونزه لري په هغوی د لوست متن څو ځلې لولي.

ــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو ګروپونو کې د لوست په مطلب خبر ې وکړي، بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د لوست (انټرنیټ) په اړه دې لنډې خبرې وکړي.

ــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو منځو کې یو بل ته املا ووایي، ښوونکی د زده کوونکو څارنه کوي او که زده کوونکي په لیکلو کې تېروتنه کوي د هغوی تېروتنې ورته اصلاح کوي.

ــ ښوونکی د لوست مشکل لغتونه له معناوو سره د تختې پرمخ لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا یې په جملو کې استعمال کړي.

ــ ښوونکی دې څو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي، تر څو هر یو له خپل فکر څخه د (س او ش) لرونکې کلمې پیدا او پر تختې ولیکي.

| ستونزمنې برخې | شبکه– جال |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ــ څوک متن سم او روان لوستلی شي؟<br>ــ څوک به د متن په مطلب خبرې وکړي؟<br>ــ څوک به لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکارولی شي؟ شبکه ــ پاڼې ــ ټولګه |

| | |
|---|---|
| | ـــ ځوک وویلی شي چې په انټرنیټ کې څه ډول موضوعات شامل دي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. |
| اضافي معلومات | |

## اووه ويشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د ناروغۍ رقعه |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>ـ د ناروغۍ رقعې په ارزښت به وپوهيږي.<br>ـ د ناروغۍ رقعې مطلب به بيان کړای شي.<br>ـ د ناروغۍ رقعې متن به سم ولوستلی شي<br>– د ناروغۍ رقعه د املا په توګه وليکلی شي.<br>– د ناروغۍ رقعې په اهميت به خبرې وکړای شي. |
| انګيزوي پوښتنې | – که چيرې څوک ناروغه شي ښوونځي ته څنګه خبر ورکوي؟<br>– ولې مور د ناروغۍ رقعه د ښوونځي ادارې ته استوو؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

ـ ښوونکی د مقدماتي فعاليتونو وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ناروغۍ رقعې لوست له ځان سره په پټه خوله د څو شيبو لپاره ولولي.

ـ ښوونکی بيا د ناروغۍ رقعې لوست په څو زده کوونکو باندې وار په وار لولي او په لوستلو کې مرسته کوي.

ـ ښوونکی لوست لولي او بيا د ناروغۍ رقعه د املا په توګه په زده کوونکو باندې ليکي.

ـ ښوونکی نوي لغتونه پر تخته ليکي او معنا کوي يې

ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپل نوم د ناروغۍ رقعه په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې وليکي، ښوونکی د زده کوونکو په کتارونو ګرځي راګرځي او د نيمګړتيا په صورت کې لازمه لارښوونه او مرسته کوي.

| ستونزمنې برخې | سر ښوونکی ـ سر معلم هيله ـ اميد |
|---|---|
| د لوست ارزونه | ـ څوک د ناروغۍ رقعه لوستلی شي؟<br>ـ څوک د ناروغۍ د رقعې په اهميت خبرې کولی شي؟<br>ـ څوک کولی شي چې د تختې پر مخ د ناروغۍ رقعه له ياده وليکي؟<br>ـ ګرانو زده کوونکو ! مور ولې د ناروغۍ رقعه د ښوونځي ادارې ته استوو؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې د ناروغۍ رقعه لومړی له ياده زده کړي او بيا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي. |
| اضافي معلومات | ټولې ليکنې په دوه ډوله دي، يوه رسمي ليکنې او بل شخصي ليکنې هر څوک په ژوند کې اړ دی چې د ځينو ستونزو، اړتياوو او ناروغيو له امله يو بل ته ليک واستوي او خپله اړتيا د ضروري ليکنې په وسيله مقابل لوري ته احوال ورکړي. په شخصي ليکنو کې معمولاً حال او احوال پوښتنې، خپل دوست ته د يوه شي د لېږدلو احوال ورکول، د روغ او ناروغ پوښتنې، د کور د ضرورتونو د اخيستلو او داسې نورو... په اړه له شخصي ليکنې څخه ګټه اخيستل کېږي. |

| شخصي لیک په درې برخو وېشل کېږي. الف : هغه لیکونه چې مشرانو، لویانو او سپین ږیرو دوستانو ته لیکل کېږي. ب: هغه لیکونه چې نږدې خپلوانو، لویانو، دوستانو، انډیوالانو او آشنایانو ته لیکل کېږي. ج: هغه لیکونه چې کشرانو او تنکیو ځوانانو ته لیکل کېږي. رسمي لیکونه هم په دریو برخو وېشل کېږي :۱ــ هغه دي چې یو لوړ مقام لکه: وزیر، معین، رییس،مدیر، معاون،حاکم، ولسوال او داسې نورو...ته لیکل کېږي. ۲ــ هغه دي چې په رتبه او حیثیت کې مساوي ځایونو ته لیکل کېږي. ۳ــ هغه دي چې تر لاس لاندې ځایونو او اداروته لیکل کېږي. | |
|---|---|

## اته ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اوونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | **ترانه** |
| --- | --- |
| د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>ــ د ترانې د بیتونو په معنا او مفهوم به پوهیږي.<br>ــ د ترانې بیتونه به سم ولوستلای شي.<br>ــ د هېواد په اړه به خبرې وکړای شي. |
| انګیزوي پوښتنې | – ایا کومه ترانه مو زده ده چې د وطن په هکله وي؟<br>– ایا کولی شئ چې له هېواد سره د مینې په اړه خبرې وکړئ؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | ــ ښوونکی په پوره چمتووالي لومړی د لوست مقدماتي فعالیتونه ترسره کوي، بیا د تېر لوست څخه یادونه کوي او وروسته له زده کوونکو څخه غواړي چې د نوي درس( ترانه)بیتونه په چوپتیا له ځان سره ولولي<br>ــ ښوونکی بیا نوی لوست په زده کوونکو باندې په وار سره د ټولګي په مخ کې لولي او په لوستلو کې پوره مرسته کوي.<br>ــ ښوونکی د ترانې بیتونه په موزون لرونکي اواز لولي او بیا د درس نوي لغتونه له معناوو سره د تختې پر مخ لیکي.<br>ــ ښوونکی بیا نوی لوست په هغو زده کوونکو باندې لولي چې په لوستلو کې کمزوري دي او وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي چې په خپله خوښه د ټولګي په مخکې له هېواد سره د مینې په اړه خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ترانې بیتونه دیوبل په مرسته ولولي او مشکل لغتونه پکې په نښه کړي.<br>ــ ښوونکی کلمې پر تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>ــ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په خپلو ډلو کې یو بل ته د بیتونو املا ووایي. خپله ښوونکی په ډلو ګرځي راګرځي او د نیمګړتیا په صورت کې د املا په فعالیت کې له زده کوونکو سره پوره مرسته کوي. |
| ستونزمنې برخې | هوډ ــ عزم، اراده، تصمیم خاوره ــ خاک |
| د لوست ارزونه | ــ څوک د لوست بیتونه سم او روان لوستلی شي؟<br>ــ څوک به د (مینه، کم، خاوره) کلمې په تخته ولیکي او معنا به یې کړي؟<br>ــ څوک کولی شي چې د هېواد په هکله خبرې وکړي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې لوستل شوي بیتونه په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي. |
| اضافي معلومات | د افغانانو د خپلواکۍ لومړۍ نښه د هېواد مینه ده. هر افغان که نرینه دی او که ښځه له خپل هېواد سره ربښتینې مینه لري. زموږ باشهامته او مېړني وطنوال د وطن په لاره کې له سرښندنې، ځان قربانولو څخه ډډه نه کوي، بلکې د هېواد په لار کې یې لوی فخر او ویاړ بولي. د خپل هېواد شاړې او وچ دښتونه ورته له کشمیر او د لندن له ماڼیو څخه زیاتې باارزښته ښکاري. ددې هېواد ادیبانو، لیکوالانو، شاعرانو او نورو ربښتینو مسلمانانو د وطن مینه د ایمان یوه ټوټه او د مینې جذبه شمېرلې. عبدالغني خان د پښتو د نومیالي مشرخان عبدالغفارخان زوی دی. دی په ۹۱۴ کال په پښتونخوا کې زیږدلی دی. په پنځلس کلنۍ کې یې مور له نړۍ سترګې پټې کړې. |

| لومړنۍ زده کړې یې د اتمانزو په آزاد ښوونځي کې ترسره کړي او د نورو زده کړو لپاره انګلستان او امریکې ته لاړ. غني خان د پښتنو نومیالی شاعر و چې ځینې شعري مجموعې یې چاپ شوي دي لکه:<br>د غني پلوشې، د پنجرې چغار، فانوس او نور د شعرونو مجموعه یې د (غني کلیات) په نامه چاپ شوي دي. دغه په هېواد مین لیکوال او شاعر هم د وطن د مینې په باب ډېر شعرونه لري چې ځینې شعرونه یې د هېواد په مجلو کې چاپ شوي دي. او ځینې شعرونه یې په درسي کتابونو کې طبع او چاپ شوي او زیاتره شعرونه یې د یو بشپړ کتاب په توګه هم طبع او چاپ شوی دی. افغانان د هېواد د هرې مینې څخه د هیواد مینه زیاته با ارزښته بولي. دادی اوس د پښتو د څو شاعرانو او ادیبانو له خولې څخه د هېواد د مینې او محبت په اړه خوږې نغمې او پخې جذبې واورو: خوشحال بابا وایي:<br>خوشحال خټک خوښي نشي بې له سرایه * خپل وطن یې و هر چاوته کشمیر کړ.<br>اشرف خان هجري چې د مغلو په بند کښېوت او له خپل خوږ وطن څخه په وتو شو، نو ډېر یې وژړل:<br>ما هاله د ځان ماتم وکړ په وینو * چې اټک وته مې شا کړه په ژړا شوم<br>احمدشاه بابا غوندې ستر واکمن هم د خپل هېواد په یاد له هند څخه ډېرې خوږې دردمنې نارې وهلي دي:<br>که هرڅو مې د دنیا ملکونه ډېر شي * زما به هېر نشي دا ستا ښکلي باغونه<br>د ډهلي تخت هېرومه چې رایاد کړم * زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه | |
|---|---|